# شریعت

ورځپاڼه

د افغانستان اسلامي امارت مرکزي نشراتي ارګان

د تأسيس کال ۱۳۷٤ هـ.ش/ دوهم پړاو / ۷۱۲ ګڼه / پنجشنبه ۲۰ رمضان‌المبارک ۱٤٤٦ هـ.ق / د کب ۳۰ مه ۱۴۰۳ هـ.ش/ ۲۰ مارچ ۲۰۲۵ میلادي




اوقات افطار و سحر به افق کابل

افطار: ۶:۰۸  سحر: ۴:۲۸

## د ناسمو رواجونو د مخنیوي په هکله د عالیقدر امیرالمؤمنین حفظه الله تعالی فرمان

الحمدلله ربِّ العْلمین والصّلوٰة والسّلام علی سیِّد المُرسلین و علی آله و أصحابه أجمعین.
د الله تعالی دین چې خاتم النبیین حضرت محمد صلی الله علیه وسلم انسانانو ته رسولی او بیان کړی دی، د دنیا او آخرت هر ډول نېکمرغي، ښېرازي او خوښي پکې نغښتې ده، چې عملي کولو سره یې یقیناً د انسانانو ټولې ستونزې حل او د ژوند په هره مرحله کې یې له بې ساري اسانتیاوو څخه برخمن وي، الله تعالی ته خپل دین خوښ دی او خپلو بندګانو ته یې د مهربانی له مخې د فکر، تدبر او عملي کولو بلنه ورکړې ده او د ژوند په ټولو ساحو کې د دین عملي کولو لپاره یې حضرت محمد صلی الله علیه وسلم نمونه ... ۲مخ



# د مالیې وزارت او د افغانستان بانک د ادارینیزو سیستمونو د ښلولو تړون لاسلیک کړ




**شریعت:** د افغانستان د اسلامي امارت د مشرتابه د فرمان پر بنسټ د مالیې وزارت او د افغانستان بانک د ادارینیزو سیستمونو د ښلولو یو تړون لاس لیک کړ.
دا چاره په رڼه توګه د عوایدو ټولولو او دغه راز د امارتي لګښتونو او معاشونو د برېښنایي ادایني لپاره مهم ګام ګڼل کېږي، چې د افغانستان بانک د لومړي مرستیال صدیق الله خالد په وینا، دا هوکړه د هېواد مالي سکتور د پایوړتیا او پرمختګ، روڼتیا، حساب ورکونې او د امارتي مالي پروسو د معیاري کولو په برخه کې ستر بدلون دی. ۶مخ

## چین د روغتیا برخه کې د همکارۍ ژمنه وکړه



د افغانستان عامې روغتیا وزارت سرپرست مولوی نور جلال جلالي او په کابل کې د چین سفیر ژاو شینګ د الشفا روغتون د بیا رغونې له چارو لیدنه کړې ده.
یاد وزارت وایي، ښاغلي جلالي الشفا روغتون د هېواد په کچه د تخصصي او ثالثي صحي خدمتونو په وړاندې کولو کې بې‌ساري بللي او د دې روغتون د بیا رغونې د چارو په بشپړېدو او دغه راز د عصري طبي تجهیزاتو په درلودلو یې ټینګار کړی دی.
دغه راز په دې لیدنه کې د چین سفیر د خپل هېواد د دوامداره همکارۍ یادونه کړې او د دې روغتونو په بیا رغونه، تجهیز او پراختیا کې د همکاریو ژمنه کړې ده.
یاده دې وي، چې د الشفا روغتون د کابل له مهمو روغتیایي مرکزونو څخه دی چې د تخصصي درملنې او نورو پرمختللو صحي خدمتونو لپاره پېژندل شوی دی.

## دیدار والی کابل با معاون کمیسیون عالی اهل تشیع و متنفذین




ملا امین‌الله عبید، والی کابل، با معاون کمیسیون عالی اهل تشیع، و جمعی از متنفذین و تاجران اهل تشیع دیدار و گفت‌وگو کرد.
این نشست که در مقر ولایت کابل برگزار شد، بر موضوعات مهم اجتماعی، اقتصادی و همکاری‌های متقابل به‌منظور تقویت نظام تمرکز داشت. ص۷

## د کندهار د کانونو ریاست سلګونه میلیونه افغانۍ عواید راټول کړي




د کندهار ولایت د کانونو او پټرولیم ریاست مسئولین وایي، چې سږ کال یې په دغه ولایت کې ۳۳۶ میلیونه ۴۲۱ زره افغانۍ عواید راټول کړي دي.
د یاد ریاست ویاند رحمت الله شېرزاد رسنیو ته ویلي، چې دغه عواید د فلورایټ،... ۷مخ

## سرمقاله

## د غزې آهونه او د اسلامي نړۍ ناغېرې

صهیونېستي رژیم یو ځل بیا غزه په وینو سره کړه. ددې رژیم وحشي جنګي الوتکو په یوه شپه د فلسطین په څلورو لویو ښارونو کې پر خوب ویده ۴۰۰ فلسطینیان شهیدان او شاوخوا ۶۰۰ نور یې ټپیان کړل. دې رژیم د اوربند د لومړي پړاو له پای ته رسېدو وروسته فرعونیت پیل کړی او پر هېچا رحم نه کوي. صهیونېست رژیم د اوربند پر مهال هم وخت ناوخت غزه تر اور لاندې نیوله او بیا بیا یې یاد اوربند نقضاوه. د شمېرو له مخې، له تازه بریدونو سره د غزې د شهیدانو شمېر له ۵۰زرو تنو واوښت. همدارنګه ددې رژیم عسکرو یو ځل بیا د فلسطینیانو پر بې کوره کولو هم لاس پورې کړی دی. د فلسطین اوسېدونکي په بشپړه توګه له بشري ناورین سره مخ دي او د ژوند کولو نږدې نوي سلنه بنسټیز وسایل نه لري او یا هم له منځه تللي دي. صهیونېستانو له غزې مسلخ جوړ کړی، خو ټوله نړۍ یې پر وړاندې چوپه ده. صهیونېست رژیم چې په تېر یو نیم کال کې د فلسطینیانو پر سر کومې لوبې وکړې، تاریخ به یې پر تندي تور داغ ساتي. صهیونېستانو داسې انساني فاجعې رامنځته کړې چې په ټول بشري تاریخ کې یې ساری نه لیدل کېږي. تاریخ د نړۍ د ټولوژنې تر ټولو ترخې شېبې ثبتوي. اسلامي نړۍ پر خوب ویده ده په دې کچه انساني فاجعه چې په غزه کې د صهیونېست رژیم عسکرو رامنځته کړه، د نړۍ په هېڅ بشري جګړه کې نه وه پېښه شوې.
بل لور ته نړیواله ټولنه، بشري حقونو سازمانونه او بنسټونه د عدالت نړیواله محکمه، د اقتصادي او سیاسي ځواک لرونکي هېوادونه او نور غلي دي. ددوی سکوت دا ښکاروي چې د جنایتونو ددې لړۍ سلا او ملاتړ د همدې خلکو له خوا ورسره وو. دا مالومه ده چې د هر جنایت ... ۷مخ

## نورستان کې ترافیکي پېښې ۱۱ تنه ټپیان کړي

د نورستان مقام د رسنیو دفتر وایي، چې نن سهار د دواب ولسوالۍ په دهن پیار سیمه کې د یو ډاکسن موټر د چپه کېدو له امله ۱۱ تنه ټپیان شوي.
د یاد ولایت والي ویاند فریدون صمیم وایي، چې ټپیان د امنیتي ځواکونو او ځایي اوسېدونکو له لورې د دې ولسوالۍ روغتون ته د درملنې په موخه لېږدول شوي دي.
د نوموړي په وینا، چې د یاد ولایت والي هم د دې ... ۷مخ



## جمعه برابر است با نخستین روز سال ۱۴۰۴ هجری خورشیدی

وزارت کار و امور اجتماعی اعلام کرده که روز جمعه، برابر به نخستین روز سال ۱۴۰۴ هجری خورشیدی در کشور است.
سمیع‌الله ابراهیمی، سخنگوی وزارت کار و امور اجتماعی این مطلب را دیروز در یک کلیپ ویدیویی بیان کرده است.
آقای ابراهیمی افزوده، هر چهار سال بعد یک روز در تقویم اضافه‌شده و روزهای سال به ۳۶۶ روز می‌رسد که سال‌جاری نیز مصادف شده به ۳۶۶ روز.
سخنگوی وزارت کار و امور اجتماعی می‌افزاید که به این اساس، نخستین روز ماه حمل سال سال جدید هجری خورشیدی (۱۴۰۴) برابر است به روز جمعه.



## هرات کې ښوونځیو ته ښوونیز توکي وېشل کېږي




پوهنې وزارت وایي، چې هرات کې د یوه ملاتړي بنسټ په همکارۍ د ښوونځي د اصول صنفي ټولګیو زده‌کوونکو او ښوونکو ته د ۱۲۱ میلیونه افغانیو په ارزښت د ښوونیزو توکو کڅوړې وېشل کېږي. یاد وزارت زیاتوي، په دې کڅوړو کې قرطاسیه، درسي کتابونه او نور اړین ښوونیز او تدریسي توکي شامل دي، چې د لومړنیو ښوونځیو ۲۷۵ زره زده‌کوونکو او ۱۰ زره او ۷۰۰ ښوونکو ته به ووېشل شي.

## سلګونو پوځي وسایط او وسلې بیا رغول شوې




د ملي دفاع وزارت په ۲۰۱ خالد بن ولید» رض» قول اردو کې د سلګونه پوځي وسایطو او وسلو له ترمیم او ګټې اخېستو خبر ورکړی دی.
یاد وزارت وایي، چې دغه وسایط او وسلې په تېر یو کال کې...۷مخ

# د ناسمو رواجونو د مخنیوي په هکله د عالیقدر امیرالمؤمنین...

ګرځولــی دی او د هر هغه څه چــي نبي صلی الله علیه وســلم امت ته وړاندي کړي دي د عملي کولو او له هر هغه څخه چي منع کړي یې دي د ځان ســاتلو حکم یې کړی دی. لکــه څنګه چي الله جل جلاله په لاندي آیتونو کي فرمایلي دي:

ژباړه: خامخا په تحقیق ســره دی تاسو لره په (کار د) رســول الله کي اقتداء غوره نیکه (کابلی تفســیر) (الأحزاب: ۲۱)

همــداراز الله جل جلاله فرمایلي دي: ژباړه: او هغه څه چي درکړي تاســي ته رسول (د الله)، نو واخلئ هغه؛ او هغه څه چي منع کوي (رســول الله) تاسي له هغه څخه، نو بېرته شــئ (مه یې غواړئ) (کابلی تفسیر) الحشر، آیت: ۷).

بله دا؛ هر هغه څه چي په دین کي نهوي، رسول الله صلی الله علیه وســلم هغه مردود او باطل ګرځولي. لکه څنګه چي له حضرت عائشــې رضي الله تعالی عنها څخه روایت دی چي رســول الله صلی الله علیه وســلم فرمایلي دي: ژباړه: چا چي داسي یو عمل وکــړ چي زموږ پــه دین کي نهوي، هغــه مردود او باطل دی.

له حضرت شعبي رحمه الله تعالی څخه روایت دی چي حضرت عمر بن الخطاب رضي الله تعالی عنه وفرمایل: یآأیهاالناس رُدُّوا الجهالاتِ إلی السنةِ( ).

ژباړه: ای خلکو! جاهلانه (د سنتو خلاف) طریقې سنتو ته واړوئ (د سمون کوشش یې وکړئ).

پورته آیتونو، حدیث شریف او مبارک اثر ته په کتو، اســلامي امارت غواړي چي د ژوند په ټولو ساحو کي د ســنت خلاف طریقې ســنت ته واړوي، بناءً دا چي؛ نکاح (واده کول) ســنت ده؛ خو متأسفانه زموږ په ټولنه کي له دغه شرعي او مسنون عمل سره ناســم او تاواني رواجونه تر دې حده ګډ شوي چي خلک یې نه یوازي په دنیوي لحاظ له ملا ماتوونکو مالي زیانونو ســره مخ کــړي؛ بلکي په دیني لحاظ هم ډېر منکرات پکي ترسره کیږي چي د څو مواردو یې دلته د اصلاح او مخنیوي په موخه یادونه کیږي:

په مهرونو کي زیاتوالی غوره کار نهدی:

شــریعت، په ودونو کي د اسانتیا او له درنو مصارفو څخه د ډډې کولو ترغیب ورکوي.

له حضرت عائشــې رضــي الله تعالــی عنها څخه روایــت دی چي، رســول الله صلي الله علیه وســلم فرمایلــي دي: ژبــاړه: په تحقیق ســره، ډېره برکتي نکاح هغه ده چي لګښت یې لږ وي.

په یو بل حدیث شــریف کــي راځي:ژباړه: په مهر کي له یو بل ســره اساني کوئ (یعني لږ مهر ټاکئ) ځکه کله نارینه، ښځې ته دومره مهر ورکړي چي له امله یې له هغې ښځې سره په زړه کي کینه (نفرت) پیدا شي.

حضرت عمر رضــي الله عنه فرمایلــي دي: ژباړه: خبردار! د ښــځو مهرونه ډېر مهزیاتوئ؛ ځکه که د مهــر زیاتوالی دنیوي عزت او یا د الله عزوجل په نزد تقوی وای، نو نبي صلی الله علیه وسلم یې تر تاسي زیات مستحق و.

لــه یــادو او ځینو نــورو مبارکو حدیثونــو څخه په استدلال ســره، فقهاء کرامو رحمة الله تعالی علیهم په مهر کي تخفیف مسنون او مرغوب بللی دی.( )

مهر، د منکوحې ښــځي حق دی او بل هېچا ته یې خوړل صحیح نهدي.

مهر، د ښــځي حق دی بل هېڅوک حق نهلري چي د هغې له خوښې پرته یې مصرف کړي، تر دې چي فقهــاء رحمهم الله تعالی وایي: کوم پلرونه او نیکونه چي د لوڼو یا لمسیو مهرونه خوري هغوی غاصب او د مهر ضامــن دي؛ نو چي پــلار او نیکه د مهر په خوړلــو غاصب ګڼل کیــږي، ورور، تره او نورو خپلوانو ته خو بېخي هېڅ لاره نشته چي د خویندو، وریرونو او یا د نورو خپلوانو نجونو مهرونه وخوري یا یې د هغوی له خوښې پرته مصرف کړي.

پلرونه او خپلــوان که د مهر لــه خوړلو راوګرځول شــي، مهرونه خپله راکمیږي؛ ځکه نن ســبا ډېري پیسې هغه دي چي د مهر په نوم اخیستل کیږي خو پلار یا نور خپلوان یې خوري او ښــځو ته د مهر په نوم ډېري کمې پیسې ورکوي.

بنــاءً هغه څــو رواجونه چــي پر شــرعي منعې او اسراف سربېره په لوړه کچه د اقتصادي ستونزو او د اجتماعي او اخلاقي ناخوالو سبب ګرځېدلي دي، چي د افغانستان اسلامي امارت د مرکزي دارالافتاء اړوند د فقهي مجالسو د علماء کرامو، د افغانستان د معتبرو شــیوخ عظامو، د اقتصادي کمېســیون د محترمو غړو او د اړوندو وزارتونو او امارتي ادارو د ګډ ګمارل شوي هیئت د استازو له لوري تشخیص شول چي په هکله یې لاندي مراتب منظوروم:

**د واده په اړوندو امورو کي د رعایت وړ ټکي لومړی ماده:**

(۱) د بالغې نجلۍ ولي چي اکثره اوقاتو کي د هغې پلار یا ورور وي شرعاً مکلف دی، د هغې د شرعي حقوقو رعایت وکړي.

(۲) د بالغې نجلۍ ولي شــرعاً مســئولیت لري، د هغې په کوزده کولو کي له هغې ســره مشــوره او د هغې مثبت نظر واخلي.

(۳) د بالغې نجلۍ ولي، شــرعاً نهشــي کولای د هغې له خوښې پرته په اجبار سره یې چاته په نکاح ورکړي.

(۴) که د بالغې نجلــۍ ولي، یاده نجلۍ د هغې له خوښې پرته په اجبار سره چاته په نکاح ورکړه، هغه کولای شــي محاکمو او اړوندو ادارو ته شکایت او عریضه وکړي، په دې صورت کــي د عالیقدر امیر المؤمنین حفظه الله تعالــی د (۱۴۴۳/۴/۲۷هـ ق) نېټې د (۸۳ج۱) ګڼه د ښځو د حقونو فرمان رعایت ضروري دی.

(۵) ښځه، د اسلام له نظره د نکاح کولو په موضوع کــي د نارینه په څېر خپلواکــه ده، په هېڅ صورت د چا مــال نهګرځي او د خپل خاونــد له مړیني او یا طلاق وروســته د دې له خوښې او مشورې پرته یې خســرګنۍ او یا هم پلارګنۍ په زوره بل چاته په نکاح نهشــي ورکولای، پهخپله خوښه چیرته او چا ســره چي وغواړي، له شرعي اصولو سره سم نکاح کولای شي.

(۶) کوم مهر چــي په نکاح کي ښــځې ته ورکول کیــږي، هغــه د ښــځې حــق دی او څــوک یې نهشــي ترې اخیســتلی، په دې هکلــه د عالیقدر امیرالمؤمنین حفظهالله تعالــی د (۱۴۴۳/۴/۲۷هـ ق) نېټــې د (۸۳ج۱) ګڼه د ښــځو د حقونو فرمان رعایت ضروري دی.

(۷) که څوک په کومه نجلۍ یا ښځه ډزې وکړي یا یې پیکی پرې کړي او یا څادر پرې واچوي، په دې او یا په بلې طریقې ســره په جبــري توګه هغه خپله ښــځه وګڼي، دا غیرشرعي عمل او جرم دی، داسي اشــخاص دي د اسلامي امارت محاکمو ته معرفي کړل شي، ترڅو د خپل جرم په سزا ورسېږي.( )

(۸) هغه کوزده چي د شــاهدانو پــه مخ کي عقد (ایجاب او قبول) پکي نهوي شــوی، شــرعاً نکاح نهبلل کیږي.

(۹) په اســلامي شریعت کي د مهر کمه اندازه لس درهمه او زیاتــه اندازه یې حد نهلــري، که مېرمن راضي وي، په لس درهمــه یا د هغې په معادل مال هم نکاح کیږي، که د هغې خوښه نهوي، بیا له زړه ســوانده او خیرخواه پلار یا نیکه پرته نور خپلوان او یا بد اختیاره پلار او نیکه نهشي کولای چي تر مهر مثل په کمه اندازه د هغــې نکاح وتړي او که یې تر مهــر مثل په کمه اندازه د هغــې نکاح تړلې وي، داســي نکاح صحیــح نهده؛ مهــر د مېرمنې حق دی، خپلوان د ځان لپاره یوه پیســه هم نهغوښتلی او نهاخیستلی شي.

(۱۰) اسلامي شــریعت د مهر د کموالي ترغیب کــړی دی؛ خلک دي هڅه وکــړي چي د زیات مهراخیســتلو رواج ختم او په کم مهر دي اکتفاء وکړي.

(۱۱) لــه مهــر څخه عــلاوه د ولــور، خوړې، بابېرې، طویانې او خوښــي په نامه د خســرګنۍ لهخوا او یا د نورو رواجونو په نوم پیســې اخیستل جائــز نهدي، فقهاء کرام رحمهم الله یې رشــوت ګڼي.( )

(۱۲) له کوزدې وروسته د پښــه خلاصي یا پښه ارتي او شــریني خوري (غټ دســتمال) او یا په نورو نومونو ســره میلمســتیاوې جوړول، بېځایه رواجونه دي، دډه دي ورڅخه وشــي، د دوه ځله دســتمال ورلو (غټ دســتمال) اجازه نشته او په یو ځل دســتمال (وړوکی دســتمال) کي به هم د نارینه او ښــځینه میلمنو تعداد په کمه اندازه وي او پــه دې مراســمو کي له زوم او نــاوي پرته بل چاتــه تحفې ورکول منــع دي؛ البته زوم او ناوي تــه تحایف به هم د وســعې مطابق یوازي جامې او نور د دول او ســینګار عادي شیان وي؛ موټر، موټرســایکل، کور (سرای) او داســي نور قیمتي شــیان به په تحفه کي نهورکول کیږي.

(۱۳) د دستمال مراســم به په هوټل کي نهوي؛ ځکه دا اسراف دی او الله تعالی فرمایلي دي: ژباړه: ای زامنو د آدمه! واخلئ تاســې زینت (ښائســت) خپــل په نزد (د وخت) د هر لمانځه (په اغوســتلو د پاکــو کالیو(جامو) د عورت ســتر) او خورئ او څښئ او اسراف (بې ځایه خرڅ) مه کوئ تاسي بې شــکه چي الله نه خوښوي مسرفان (بې ځایه خرڅ کوونکی). (الاعراف: آیت ۳۱). (کابلی تفسیر)

(۱۴) له کوزدې او نکاح وروســته دي هڅه وشــي چي د امکان په صورت کي هر څومره چي ژر وي، واده وشي.

(۱۵) له کوزدې وروسته رواجي او تکراري پوښونه (جوړې) منــع دي، په کال کي یو ځل د زوم لهخوا یوازي ناوي ته له اســراف پرته د وســعې مطابق د پوښ (جوړې) ورلو اجازه شــته، د ناوي لهخوا زوم ته پوښ (جوړې) ورل مطلقاً منع دي.

(۱۶) د ولیمې او واده مراســم به له اسراف او ریاء پرته د زوم د وسعې مطابق د هغه د خوښې په ځای او موټرو کي ترســره کیږي، خســرګنۍ یې نهشــي مجبــور کولای چي په هوټل، یا قیمتي موټرو کي د واده مراسم ترسره کړي.

**(۱۷) زوم به د واده مراســم په امارتي موټرونو کي نه ترسره کوي.**

(۱۸) د واده پــر وخــت د زوم لهخــوا دي د ناوي کورنۍ ته خوړې یا طوی (پاخه یا خام خوراک) نه وروړل کیږي، همدارنګه د بولې(شــیریني خورۍ) او جوړې د مصارفو اخیستل او غوښتل هم منع دي او همــداراز له زوم څخــه د دودي او ټکري په نوم او یا پــه نورو نومونو رختونه غوښــتل منع دي او د شریعت لهمخې د یادو شــیانو اخیستل ناجائز کار دی.

(۱۹) د نــاوي ورلو پر وخت د ناوي د ماما، د ناوي د همزولــو، د کلیوالو او یا بل خدمتکار لهخوا او یا د دوی لپاره د زوم له کورنۍ څخه پیســې غوښــتل منع دي، البته که د کلي خدمتکار ته چي همېشــه په ښادیو کي د کلیوالو خدمت کوي په خپله خوښه څوک د صدقې په نوم پیسې ورکوي، باک نهلري.

(۲۰) په ودونو کي د لوبو داســي مسابقې جوړول چي ګټونکي ته د موټر، موټرسایکل یا بل شي انعام ورکول کیږي منع دي، ترڅو د بېځایه اســراف مخه ونیول شــي، البته د جائزو لوبو مسابقې چي انعام پکي نهوي، جوړېدای شي.

(۲۱) د کوزدې، دســتمال یا واده د مراسمو پرمهال ډزې (ټــکان) کول او لــه امارتي وســایطو څخه اســتفاده کول منع دي؛ همدارنګه په ورته مراسمو کي د موټرو او موټرســایکلو ځغلول، لوبې وراوړ تیارول او یا داسي نور کارونه چي د لارې د بندېدو یا د تلفاتو او یا د خلکو د اذیت ســبب کیږي، منع دي.

(۲۲) په واده کي یا له هغه وروســته ناوي ته د نورو کورونو د نارینهوو او ښځینهوو لهخوا برخه (جامې/پیســې) ورکول او بیا د ناوي لهخــوا په عوض کي برخه ورکول منع دي؛ ځکه له دې ناوړه رواج څخه یو دروند تکلیف رامنځته شــوی او بده لا دا چي د هر څه عوض به بېرته ورکوي چي د محبت پرځای نفرت پیدا کوي.

(۲۳) د دستمال په مراســمو کي به د زوم له کور پرته نور مېلمانه ناوي ته د پیســو ډالۍ نهورکوي او نــه به د ناوي کورنۍ مېلمنو ته جامې او نورې ډالۍ ورکوي، البته له اســراف او ریاء پرته د مېلمنو اکرام پروا نهکوي.

(۲۴) بدل/موخې ښه عواقب نهلري حتی الامکان دي ترې ډډه وشــي، د بدل/موخې په صورت کي د مهر ټاکل او ورکول ضروري دي، علماء کرام دي د بدل/موخې د کراهیت په هکلــه خلکو ته پوهاوی ورکړي.

**د مړي په مراسمو کي د رعایت وړ ټکي**

**دوهمه ماده:**

(۱) په ځینو ســیمو کي د مــړي د کورنۍ له لوري کلیوالو او نورو خلکو تــه په معینو ورځو کي طعام او مېلمســتیا برابرېږي، چي فقهــاء کرامو ترې منع کــړې ده، په دې هکله د فقهــاء کرامو څو اقوال په لاندي ډول دي:

– د مړینې په مناسـبت د مــړي د کورنۍ له لوري خلکــو ته مېلمســتیا برابــرول مکــروه دي؛ ځکه مېلمستیا په خوشــحالیو کي وي، نه په غمونو کي، دا ډېــر بد بدعت دی (چي د غــم په ورځ خلکو ته مېلمســتیا تیاروي، ځکه چي شریعت کي دا اصل نهلري او بل دا چي د دغو ورځو خپل خپل ترتیبونه او مکلفیتونه دي).

– د مړینې په مناسبت راټولو شویو خلکو ته د مړي د کورنۍ له لــوري د خوراکونو چمتو کول ګناه ده؛ جریر بــن عبد الله رضی الله عنه وایي: د مړي په کور کــي د هغه د خپلوانو راجمع کیــدل او د هغوی له لــوري د خوراک ترتیبول موږ له نیاحت څخه ګڼو؛ یعنې لکه ویر (چیغــي او فریاد) مو چي ممنوع او بد ګڼلو دا مو هم بد ګڼلــو (حال دا چي نیاحت او وېر کبیره ګناه ده).

– د مړي د کورنۍ له خوا خلکو ته خوراک برابرول مکــروه دي، ځکه چي له دې ســره یــې مصیبت زیاتېــږي او بل دا چي د جاهلیت د زمانې له خلکو سره مشابهت راځي.

– رواجي خیراتونه د ځان مشهوره کولو او ریاء لپاره دي، د الله تعالــی لپاره یې نهکوي لــه دې امله باید ډډه ترې وشي.

– رواجي خیرات که مباح هم شــي له دې امله چي خلکــو د واجبوالي مرتبې ته رسـولې، مکروه او ترک یې ضروري دی.

پورته ذکر شــویو شــرعي دلیلونو او همداراز نورو ګټو، ټولنیزو، شرعي او اقتصادي رامنځته کېدونکو زیانونو ته په کتو ســره په لاندي ټکــو باندي عمل کول ضروري دي:

(۱) د مــړي د کور له لوري د بدرګې او مېلمســتیا په څېر د رواج لــه مخې (په لومړۍ، دریمه، اوومه او څلوېښــتمه ورځ) طعام برابرول، منع دي،( ) د مېلمستیا له شــکل او د ورځې له تعیین پرته د نقد مــال یا جنس صدقه کول چي لاندي شــرطونه هم پکي رعایت شوي وي، مړي ته د ثواب سبب دي:

۱– صدقه به د ریاء، شــهرت، ســیالۍ، رواج او د خلکو د پیغور له امله نهوي.

۲– صدقه او خیرات به واجــب او ضروري نهګڼل کیږي، که چا ونهکړ هغه ته به په بده سـترګه نهکتل کیږي.

۳– صدقــه او خیــرات یــوازي بالــغ او عاقــل وارثان له خپل مال څخه په خپله خوښــه کولای شــي، د یتیــم او غیرحاضر وارث مــال به پکي نه مصرفېږي.

(۲) د یتیم له مال څخه په مړي پســې خیرات او صدقه کول که څه هــم د یتیم په اجازه وي، منع دي، هغــه څوک چي د یتیم پــه مال کي دا ډول تصرف وکړي، ضمان پرې لازم دی.

(۳) په ځینو ســیمو کي د رواج لــه مخې خلک د مــړي په لومړي اختر د مړي کــور ته د تعزیت لپاره ورځي، دا هم ناسم رواج او منع دی.

(۴) په ځینو ځایونو کي رواج دی چي ښــځه تر وفات وروســته ضرور باید د پلرنۍ (هدیرې) ته انتقال کړل شــي او نه انتقال یــې د ټول قوم لپاره پیغــور ګڼل کیــږي، چي دا کوم شــرعي حیثیت نه¬لري، بلکي غــوره دا ده چي د هغې د خاوند او اولادونو د خوښې په هدیره کي دفن کړل شي.

(۵) د ګاونډیانــو او خپلوانو له لوري د مړي کور ته طعام برابرول مستحب عمل دی.

(۶) د تعزیت لپاره د شــریعت مطهره له لوري د دفن له ورځې ســره درې ورځې ټاکل شوي دي، البتــه غائبو اشــخاصو ته تر هغه وروســته هم د تعزیت کولو اجازه شته.

**(۷) له یو ځل فاتحې کولو وروسته بیا د مړي کور تــه د فاتحې په نیت ورتلل مکروه دي.**

(۸) امارتي مســئولین دي د خپلو وفات شــویو خپلوانــو فاتحې نهاعلانوي، له اعلان پرته د خپلو اوسېدلو په ځای کي دي یوازي تــر درو ورځو د فاتحې لپاره کښېناستلای شي.

(۹) حیله اسقاط د هغه مړي لپاره کیږي چي فقیر، یا مالدار وي خو له وصیت پرته وفات شــوی وي، یا یې وصیت هم کــړی وي خو د مال دریمه برخه یــې د واجبو فدیو لپــاره کفایت نهکــوي، که مړی شتمن وي او وصیت یې کړی وي پر ولي باندي یې واجب دي چي واجبې فدیې به یې د مال له دریمې برخې څخــه اداء کوي او یوازي په حیله اســقاط به بسنــه نهکوي، البته د حیلې طریقــه به د حنفي فقهې د هغو شــرطونو مطابق وي چــي یادونه یې شوې ده.

(۱۰) د شرعي حیلې شرطونه په لاندي ډول دي:

۱– د حیله اســقاط لپاره جمع شوی مال به د قبض لپــاره یوازي مســکینانو تــه ورکول کیــږي، غني، ماشــوم، لیوني، ســفیه (بې عقله) او کافــر ته به نهورکول کیږي.

۲– حیله اسقاط به د رواج او ځان ښودنې په خاطر نهکیــږي؛ بلکي په دې نیت به کیــږي چي د مړي غاړې پرې خلاصې شي.

۳– د مړي وارثان به د حیلې لپاره له داســي سړي څخه پیسې یا بل جنس نه قرض کوي چي هغه یې په خپله مالک نه وي او نه به له داسي شریک څخه قرض اخلي چي د بل شریک یې اجازه نه وي.

۴– د فدیو ګرځوونکی باید د مړي وارث یا د وارث وکیل وي او وکیل ته وویل شــي چي د هرې دورې له ختمېدو وروسته د هرې بلې دورې لپاره فقیر ته د مال په ورکولو او بېرته اخیستلو کي بیا زما وکیل یې.

۵– د مړي قضاء شــوي لمونځونــه او روژې باید دقیق حســاب شــي او که دقیق معلوم نه وي نو په غالب ګمان دي حساب شي.

۶– فقیــر ته د ورکړې پرمهال به یې دا نیت وي چي فقیر د دغو پیسو او شیانو مالک ګرځي.

۷– فقیــر به په دې پوه وي او یا به یې څوک پوهوي چي په قبض کولو سره یې مالک ګرځي.

۸– کوم شــخص چي فدیې ګرځوي او فقیر ته یې ورکوي باید لاســونه ترې لرې کړي او له هغه څخه په بېرته اخیستلو کي تلوار ونهکړي.

۹– د فدیو ګرځوونکی به فقیر ته داسي الفاظ وایي: دا د فلانکــي چــي د فلانکــي زوی دی د لمونځ، روژې، قســم یا ...فدیې دي قبولې یې کړه، هغه به وایي: قبولې مي کړې، زه یې مالک شوم، بیا به یې بېرته یاد شخص ته هبه کړي.

۱۰– حیلــه کوونکــي به له دورې وروســته د فقیر له زړه بدوالي څخه ځان ســاتي، کــه مال د حیله کوونکو وي دومره مال به په صدقه کي ورکوي چي د فقیر زړه پرې خوشحاله شي.

۱۱– که د حج په میاشــتو کي حیله کیږي دا دي په نظر کي ونیســي چي دومره پیســې یو ځای فقیر ته ورنهکړي چي حج ورباندي فرض شي.

۱۲– که مړي وصیت نــه وي کړی، ولي یې له مال څخــه فقیر ته د وارثانو په رضــا هغه مهال څه مال ورکولای شــي چي په وارثانو کي بــه یې غائب او صغیــر نه وي او که یې وصیت کــړی وي، نو بیا د میــت د مال له دریمې برخې څخــه مال ورکولای شي که څه هم په وارثانو کي غائب یا یتیم وي.

**لــه حج او عمرې څخه د راســتنېدو پر مهال له ځینو غیرضروري مصارفو او ناســمو رواجونو څخه ډډه**

**دریمه ماده:**

په ځینو سیمو کي له حج او عمرې څخه د راستنېدو پرمهال د مبارکۍ او ســترې مشــۍ په مناســبت د ســیمې د خلکو او راغلو او رابلل شــویو مېلمنو ته درنده مېلمســتیا او خیرات برابرول او همداراز لوړ بیه تحفې خلکو ته ورکول ضروري رواج ګرځېدلی دی چي له یوه پلوه کوم شــرعي حیثیت نهلري او له بله پلوه د زیات لګښــت له املــه د زیاتو خلکو له حج او عمرې څخه د محرومیت او یا د تأخیر سبب ګرځیدلی دی، له همدې املــه باید ټول حجاج او معتمرین له یادو مصارفو او زیان اړوونکو رواجونو څخه ډډه وکړي.

**د دې فرمــان د حکمونو پوهــاوی ورکول او د هغو عملي کول**

**څلورمه ماده:**

(۱) د کورنیو چارو، ســرحدونو، قومونو او قبایلو، اطلاعاتو او فرهنګ، د ارشاد، حج او اوقافو، پوهنې او لــوړو زده کړو وزارتونه، رســنۍ او په ولایتونو او ولســوالیو کي د علماوو شوراګانې، فقهي مجالس، د مساجدو خطیبان او امامان، ولسي مخور او نفوذ لرونکي مشران دي په حکمت، مصلحت او تفاهم ســره په خپله برخه کي د دې فرمــان د حکمونو په اړه خلکــو ته پوهاوی ورکړي او د پورتنیو احکامو د عملي کولو کوښښ دي وکړي.

(۲) د چارو د اداري لوی ریاست، د امربالمعروف، نهــي عن المنکر او شــکایتونو د اورېدلو وزارت او د فرمانونــو او حکمونو د تعقیــب او نظارت لوی ریاســت دي، په دوامداره توګه د دې مادې په (۱) فقره کــي د یــادو وزارتونو، ادارو او اشــخاصو له اجراءآتو څخه څارنه وکړي.

انفاذ

پنځمه ماده:

دغه فرمان د توشــېح له نېټې څخه نافذ او په رسمي جریده کي دي خپور شي.

**والسلام علیکم ورحمة الله وبرکاته!**

**امیرالمؤمنین شیخ القرآن والحدیث**

**مولوي هبة اللهاخندزاده**

# د پاکستان وروستی پېښې او د حکومت ناکام مدیریت

صابر جان محصل

عبدالرحمن ابـــن خلدون په خپل کتاب د ابن خلدون مقدمه کې نظامونه د انســـان له ژوند ســـره تشبه کړي، هغه لیکي چې نظامونه هم د انســـانانو د ژوند په څېر ۳ پړاوونه لـــري ماشـــومتوب، ځواني او بوډاتوب، مطلـــب دا چې نظام هم په لومړي ســـر کې د ماشومانو په څېر نادان او بې تجربې وي، بیا د ځوانانو په څېر قوت پیدا کوي او بیا لکه عمر خوړلی انســـان ضعیفه کېږي د مرګ تر کندې رسېږي او له منځه ځي.

ابـــن خلدون رحمه الله د نظامونو د پرځېدلو څـــو عمده علتونه بیان کړي چې ظلم ،بې عدالتي او د ولسونو ناخوښي یې مهم علتونه بللی شو.

له ۱۹۴۷ میلادي کال مخکې چې کله د پاکســـتان د جوړېدو ګنګوسې خپرېدې د هند ډېری مســـلمانانو او علماء کرامو د یاد هېواد د جوړېدو مخالفت کاؤ او دا کار یې د هند د مســـلمان ولس په زیان ګڼلو، چې د پاکســـتان په جوړولو سره د هند مسلمان ولس او د هغوی قوت تقسیمېږي.

د پاکســـتان د جوړېدو فکر او نظریه چې د انګرېزي اســـتعمارګرو له خوا طرحه شوې وه، په ســـیمه کې د ځینو نورو داســـې اشـــخاصو په ملتیا پلې شوه چې هویت یې هېڅ څرګند نه ؤ.

د هند د مســـلمان ولس او د جیدو علماؤو د اختـــلاف باوجود د ۱۹۴۷ میلادي کال د اګســـت په ۱۴ مه د پاکستان په نامه په سیمه کې یو هیواد رامنځته شو.

داسې هېواد چې د افغانستان په شمول د سیمې ډېریو هېوادونو تر ډېره وخته په رسمیت نه پېژانده.

د پاکســـتان له جوړېدو یو کال وروســـته چې کله د پاکســـتان د حکومـــت له لوري د بلوچســـتان ایالت سیمه د پاکستان برخه وبلل شوه د بلوچستان د ولس غبرګونونه یې را وپارول او د پاکستان د نظام په وړاندې یې له خپلې خاورې څخه د دفاع په پار مسلحه جګړه پیل کړه چې پاکستاني پوځي نظام یې په غبرګون کې له تېرو ۷۰ کلونو راهیسې د بلوچ قوم په وژنو او ربړولو بوخت دی، او د لکونو په تعداد یې بلوچان قتل کړي، بندیان کړي او تري تم کړي دي. د دغه ظلمونو په غبرګون کې له تېرو ۵۰ کلونو راهیسې بلوچ ازادۍ غوښـــتونکو هم د پاکستان په پوځ او د نظام په ادارو بریدونو ته دوام ورکړی، چې په دې وروســـتیو کالونو کې یې په بریدونو کې د پـــام وړ زیاتوالی راغلی، د راپورونو له مخې په تېر ۲۰۲۴ م کال کې په بلوچســـتان ایالت کې پـــر پوځ او ادارو ۳۱۶ بریدونه شـــوي چې د ۱۷۹۰ په شاوخوا کې یې د پوځ عســـکر وژلي او ډېری پوځي وسایط او تاسیسات یې له منځه وړي.

چې د بلوچســـتان ایالت د خضدار ولایت مرکز نیول، د هوتل پـــر نظامي بیز برید، په تربت کې د بحري ځواکونو پر بیز برید د لویو لارو تړل، د بولان په ســـیمه کې د ۲۰۰ عســـکرو برمته کول او تیره ورځ د بلوچســـتان په نوشکي سیمه کې د ۹۰ عسکرو وژنه یې مهم بریدونه بلل کېږي.

همدغه راز کله چې په ۲۰۰۶ م کال کې پاکســـتاني پوځ په پلازمېنه اسلام اباد کې د لال مسجد په پېښه کې د شیخ عبدالرشید غازي په شمول ۳۲۷۰ د مدرسې طالبان او ماشومان په شهادت ورسول او په خیبر پښتونخواه کې یې په مختلفو بهانو ډېری پوځي عملیات تر سره کړل چې ملکي او بېګناه ولس ته په کې د سر او مال زیانونه واوښتل، په خیبر پښتونخواه کې هم د پاکستاني طالبانو/ تحریک طالبان پاکستان د پوځ او ادارو په خلاف د جهاد اعلان وکړ چې په ډېر کم وخت کې د ولس له پراخ ملاتړ برخمن شول او قـــوت یې پیدا کړ، چې له تېرو ۱۸ کلونو راهیســـې د رژیم په خلاف په جګړه بوخت دي او په دې وروستیو کالونو کې یې په بریدونو کې د پام وړ زیاتوالی لیدل کېږي او هره ورځ پوځ ته د درنو تلفاتو او زیانونو د اړولو ادعاوې کوي.

د تېر ۲۰۲۴ کلني راپور کې د پاکســـتاني طالبانـــو غورځنګ پوځ ته تر ۲۰۰۰ د زیاتو تلفاتو د اړولو ادعا کړې وه او تر څنګ یې د ســـلګونو په تعداد د وسایطو او تاسیساتو د لـــه منځه وړلو یادونه هم کړې وه، چې تازه یې د الخندق په نامه پســـرلني عملیات پیل کړي او له تیرې ورځې راهیسې یې په ټول پاکستان کې لسګونو بریدونه کړي او پوځ ته یې ځاني او مالي زیانونه اړولي.

همدا راز په تېر میلادي کال کې د کشـــمیر ولس هم له پاکســـتانه د ازادۍ د غوښتلو له شـــعارونو سره بازارونو ته راووتل چې له خپلې ســـیمې څخه یې د پاکستاني پوځیانو د وتلو غوښتنې کولې.

د ګلګت بلدســـتان خلک هم د پاکستاني پوځ له چلن شکایتونه لري او وخت ناوخت یې په خلاف سوله ییز حرکتونه کوي.

۲۰۲۴ میلادي کال د پاکســـتاني پوځ لپاره له ټولو خونړی کال بلل شوی چې پوځ ته په کې ډېری تلفات اوښتي، سیمې او مرکزونه یې له لاسه ورکړي او ډېری پوځي تاسیسات او مرکزونه حتي الوتکې یې له منځه تللي دي.

پاکســـتاني نظام د امنیت په تأمینولو کې پاتې راغلی او د سیمې په یوه ناامنه هېواد بدل شوی،

پاکســـتان تل د خپلو ټولو ناکامیو د پټولو هڅې کوي د پرې ګوته ګاونډیو ته نیسي او یا هم د عامه فکر د مصروف ســـاتلو لپاره هدفي وژنې کوي، د سیاسي او علمي اشخاصو ژوند له ګواښ ســـره مخ شـــوی او په هدفي وژنو کې پوځ او د پاکستان د استخباراتي ادارو ښکیلتیا هم ولس ته څرګنده شوې.

ولس پر حکومت بې باوره شـــوی او ورځ تربلې د ولس له حکومت سره د فاصلې واټن زیاتېږي.

پاکستان د بهرنیو سیلانیانو لپاره تر ټولو نا امنه هیواد بلل شوی.

پاکســـتانی پوځ د ســـیمې د بې ثباتۍ لپاره د خوارجو د ترهګرې ډلې حمایت کوي په خپله خاوره کې یې خوارجو ته مرکزونه ورکړي او د پاکســـتان له خاورې په ســـیمه کې ترهګریز بریدونه رهبري کوي.

له خارجي ترهګرو سره د اړیکو او حمایت له امله یې د سیمې له هیوادونو سره سیاسي اوضاع زیانمنه شوې.

او په سیاسي لحاظ منزوی شوی دی.

پورتنیو امنیتي او سیاســـي اوضاع ته په کتو داسې برېښـــې چې پاکستانی نظام د خپلو ظلمونو، فساد، اقتصادي ستونزو او ناکامه مدیریت له کبله د عمر خوړلي انسان په څېر د ژوند په وروســـتي حال کې دی او له سختو ننګونو سره مخ د ګړنګ پر غاړه ولاړ دی.

# د مالي فساد د مخنيوي شرعي اصول او تطبيقي حلارې

محمد قاسم عزام



اسلام یو بشپړ او جامع دین دی چې د انسان د ژوند هر اړخ لپاره لارښوونه کوي، د فردي عباداتو څخه نیولې تر ټولنیزو، اقتصادي او سیاســـي نظامونو پورې. له همدې امله، د مالي فســـاد مخنیوی د اسلامي شریعت له مهمو موخو څخه ګڼل کېږي، ځکه چې دا عمل د ټولنې عدل، انصاف او اقتصادي ثبات ته زیان رســـوي. اسلام مالي فساد یو لوی خیانت ګڼي، چې د الله تعالی او د ټولنې د افرادو حقونه ضایع کوي.قرآن کریم دا اصل بیانوي چې د خلکو مالونه باید په ناحقه و نه خوړل شـــي.

د مالي فســـاد اساســـي عوامل له اخلاقـــي کمزورۍ او د دیني شـــعور له نشتوالي ســـره ژور تړاو لري. کله چې د انســـان ایمان کمزوری شـــي، د الله تعالـــی له امرونو څخـــه غفلت کوي او د اخروي حســـاب و کتاب تصور یې له ذهنـــه وځي، نو دا وضعیت یې د نامشـــروع عاید ترلاســـه کولو ته هڅوي. دا یو حقیقـــت دی چې د تقوا او ایماني شـــعور نشـــتون د انســـان زړه نرموي، وجدان یې خاموشـــوي او د حق و باطل ترمنځ کرښـــه ورڅخه ورکېږي.یو څوک که دا بـــاور ولري چې الله تعالی د هر عمل حســـاب اخلي، هره معاملـــه څاري او هر خیانت به یې بربنډېږي، نو هېڅکله به د فســـاد، خیانت، رشوت او نامشـــروع ګټې فکر هـــم ونه کړي. خـــو کله چې دا باور کمزوری شـــي، انســـان د دنیوي ګټو لپاره مختلفې توجیهات لټـــوي، خپل اعمال د وخـــت اړتیا بولي او د وجـــدان د مطمئن کولو لپـــاره ځان تـــه بېلابېل عذرونه وړاندې کوي. دا حالت د فاســـد کس لپاره دا اسانه کوي چې خپل ناســـم عمل ته مشـــروع بڼه ورکړي.الله تعالی فرمایـــي: یعنې دوی ګومان کوي چـــې پر حقه دي، خو حقیقت دا دی چـــې دوی درواغجن دي. دا آیت د هغو کســـانو لپاره هم صدق کوي چې فســـاد کوي، خو خپل عمل ته مختلـــف توجیهات لټوي، دا کار د خپلو حقوقو برخه ګڼي، یا یـــې د وخت اړتیا بولي. د فســـاد عاملین ډېری وخت خپل اعمال داســـې تفسیر کوي چې ګواکې دوی مجبور دي، شـــرایط ورته سخت دي، یا دا چې که دوی دا کار نـــه کوي، بل څوک به یـــې وکړي. دا ټول د نفس د تېر ایســـتلو لارې دي، چې انسان له الهي وېرې بې‌پـــروا کوي. کـــه د یو چا په زړه کـــې حقیقي ایمان او اخروي باور پیاوړی وي، نو دا ډول شـــیطاني وسوســـې به پـــرې اغېز ونه لـــري، ځکه هغه به تل د آخرت ســـزا ته متوجـــه وي.نو اساســـي حل دا دی چـــې د اخروي محاســـبې احساس پیاوړی شـــي، د انسان وجدان بیدار وســـاتل شـــي او د ایمان هغه قوت رامنځته شـــي چې د دنیا فاني ګټې ورته هیڅ ښـــکاره نه شي. که د هر انسان په زړونو کې د الله تعالی ویره پیدا شـــي، نو نه یوازې دا چې له فســـاد به لاس واخلي، بلکـــې د ټولنې د اصلاح لپاره به هم هڅې وکړي.

پـــه ټولنه کې اقتصادي بې‌عدالتي د مالي فســـاد له مهمو لاملونو څخه ګڼل کېږي، ځکه چې دا حالت د افرادو تر منځ نابرابري زېږوي او د مشـــروع پرمختګ مخه نیسي. کله چې یو فرد یا یوه ټولنه دا احساس کړي چې د عادلانه ســـیالي اصول تر پښو لاندې شوي، د استعداد، صداقت او زیـــار پر ځای واســـطې، شـــتمني او واکمـــن اړیکې پرمختګ ټاکي، نو د خلکو اعتماد پر رســـمي اقتصادي او اداري سیســـتم کمزورې کېږي. دا وضعیت افراد دې تـــه هڅوي چې د ځان د خوندیتوب یـــا د خپلو موخو د ترلاســـه کولو لپاره غیرقانونـــي لارې وکاروي، ځکه چې هغوی ته ښکاري چې یوازې د صداقت او مشروع هڅو پر مټ هدف ته رسېدل ناشـــوني دي.دا ډول بې‌عدالتي نـــه یوازې د افرادو لپاره مایوســـیت او نارضایتي رامنځته کوي، بلکې د ټـــول اقتصاد لپاره هم زیان رســـوي. کله چې د یوې ټولنې اقتصادي سیســـتم د مســـاوي فرصتونو پر بنســـټ نه وي جوړ، نو دا یوازې شـــتمن او باقدرت اشـــخاص لا بډای کوي، خو عام وګړي، چې د ســـیالۍ لپاره مناســـب امکانـــات نه لري، لا ډېر زیـــان ویني. دا حالت د فســـاد کچه نوره هم لوړوي، ځکه چې بې‌وسه خلک هڅه کوي له هـــرې ممکنې لارې اقتصادي ثبات ته ورسېږي، حتی که دا لارې نامشروع هم وي.

د مالي فساد یو له سترو زیانونو دا دی چې د عامو خلکو حقونه تر پښـــو لانـــدې کېږي. هغه شـــتمني چې باید د ټولنـــې د پرمختګ، د عامه خدماتـــو او د بېوزلو خلکو د لاســـنیوي لپاره وکارول شي، د یو شمېر اشخاصو جیبونو ته لوېږي. د شـــفافیت نشـــتوالی او اقتصادي نابرابري دا ســـتونزه لا ژوروي، ځکه چې بډایه او واکمن کســـان د خپلو ګټو د خوندي کولو لپاره د فســـاد ملاتړ کوي او دا یو تسلســـل جوړېږي چې په ټولنه کې عادلانه اقتصادي سیستم له منځه وړي.

د دې تر څنګ، اقتصادي بې‌عدالتـــي بیت المال ته هم جدي زیان رســـوي. هغه مالي منابع چې باید د ټولنې د پرمختګ او د عامو وګړو د ژوند د ښه والي لپاره وکارول شـــي، د فاسدو اشـــخاصو له لوري حیف و میل کېږي. دا عمـــل د عامه پروژو د نیمګړتیـــاوو، د خدماتو د ټیټ کیفیـــت او د ټولنیز اعتماد د کمښـــت لامل ګرځي. کله چې خلک ویني چې دولتـــي او اقتصادي منابع یوازې د محـــدودو کســـانو په واک کـــې دي، نو هغـــوی یا له اقتصادي فعالیتونـــو څخه لاس اخلي، یا هم هڅه کوي چې د دې نابرابرۍ د جبران لپاره د فســـاد لارې ته داخل شـــي.د بېوزلو لپاره د پرمختګ فرصتونه هم د اقتصادي بې‌عدالتـــۍ له کبله محدودېږي. که یو ځوان تعلیم لري، خو د واســـطې یا مالي شتمنۍ له امله ورته د کار فرصت نـــه پیدا کېږي، نو دا وضعیت نه یوازې د هغه شـــخص، بلکـــې د ټولې ټولنې لپاره تاوان لري. کله چې شـــفافیت له منځه ولاړ شـــي او افراد یوازې د واسطو، رشوت، او نامشـــروع اړیکو له لارې پرمختګ کولی شـــي، نو دا د اســـتعدادونو د ځپل کېـــدو، د ټولنیز ثبـــات د کمزورۍ کېـــدو او د اقتصاد د فلج کېدو ســـبب ګرځي.له همدې امله، د اقتصادي عدالت رامنځته کول نه یوازې اخلاقي او ټولنیز ارزښـــت لري، بلکې د مالي فســـاد د مخنیوي لپاره هم اساســـي شـــرط دی. یوازې هغه ټولنې د فساد له ناوړه اغېزو څخه خوندي پاتې کېدای شـــي چې هلته د مســـاوي فرصتونو، شـــفافیت او عادلانه سیالۍ اصول مراعات شي.

په اســـلامي تاریخ کې داســـې بېلګې شـــته چې څنګه عادلانه نظام مالي فســـاد ته اجازه نه ورکوله. د حضرت عمر فاروق رضي الله عنه خلافت یو روښـــانه مثال دی، چېرې چې حساب ورکونه، د چارواکو څارنه او د خلکو شـــکایتونو ته جدي پاملرنه کېـــده. د بیت المال څخه د ناوړه استفادې مخنیوی د دولت مهمه دنده وه. حضرت عمـــر رضي الله عنه به خپلو والیانو ته ســـخت شـــرایط ایښودل، هغوی به یې څارل او که به یې چا خیانت وکړ، نو د شریعت مطابق سزا به یې ورکوله. دا ټول هغه تدابیر وو چې اســـلامي نظام یې له مالي فساد څخه ساته.

اســـلام د مالي فســـاد د مخنیـــوي لپاره یـــو واضح حل وړانـــدې کوي، چې هغـــه د افرادو اخلاقـــي اصلاح، د عادلانه اقتصادي سیســـتم رامنځته کول، او د قوي عدلي نظام جوړول دي. که یو چارواکی د بیت المال ســـاتنه د الله تعالی امانت وګڼي او که یو تاجر د خپلو ګټو پر ځای د ټولنـــې خیر تـــه لومړیتوب ورکړي، نو د فســـاد لمن به راټوله شـــي. که قانون داسې قوي وي چې مجرم ته د سزا ویره موجوده وي، نو د فســـاد کچه به ټیټه شي.اســـلامي شـــریعت یوازې د اخلاقي نصیحتونو په وینا بسنه نه ده کړې، بلکې د مالي فســـاد مخنیوي لپاره عملي اقدامات یـــې لازم ګڼلـــي دي. هغه کســـان چې د عامه شـــتمنیو څخه ناوړه اســـتفاده کوي، بایـــد د عدالت میز ته راکش شـــي، د هغوی لپاره د عبرتناکې ســـزا ټاکنه ضروري ده او د هغوی شـــتمني باید بېرتـــه بیت المال ته را وګرځول شي.

رســـول الله«ص»فرمایلي: یعنې که موږ یو څوک د کوم کار لپـــاره وګمـــارو او تنخوا ورکړو، نو کـــه هغه نور څه واخلي، نـــو دا غلول (خیانت) دی.پـــه مدني ژوند کې شفافیت او حســـاب ورکونه د فساد د مخنیوي لپاره له ټولو اړین اصول دي. اســـلام دا اصـــل وضع کړی چې چارواکي د خلکـــو خدمتګاران دي، نـــه واکمنان، او د دوی هـــر ډول تصرف باید د عامې ګټې پر بنســـټ وي. که د دولت مالي معاملې روښـــانه وي، د عامو خلکو د څارنې لپاره خلاصې وي او د چارواکو عاید او شـــتمنۍ معلومې وي، نو د فساد امکانات کمېږي.

هغه کســـان چې د مالي فســـاد پر ضد مبارزه کوي، باید د علم، تقـــوا او عدل لـــه ځانګړنو برخمـــن وي، ځکه چـــې یوازې دا صفتونه کولی شـــي د فســـاد مخنیوي ته لازم شـــرایط برابر کړي. علم د فســـاد د پېژندلو، د هغه د پیچلیو بڼو د تحلیل، او د مناســـبې حل‌لارې د موندلو وســـیله ده. یو قاضي، محاســـب، یا مفتش که د شرعي اصولو، مالي سیســـتمونو او اداري قوانینو پوهه ولري، نو مفسد اشـــخاص نشي کولی خپل ناسم عملونه له سترګو پټ کـــړي. علمي بصیرت چارواکو تـــه دا وړتیا ورکوي چې د فساد ریښـــې وڅېړي، د هغه عوامل وپېژني، او د پایدارو حل‌لارو په مټ د شـــفافیت فضاء رامنځته کړي.

تقوا هم د فســـاد ضد مبارزې لپاره حیاتي ارزښت لري، ځکه چې کـــه چارواکي، قاضیـــان، او تفتیش کوونکي خپلـــه د اخلاص، صداقـــت او د الله تعالـــی د مراقبت احســـاس ونه لري، نو هغوی نشـــي کولی د فساد مخه ونیســـي. هغه څوک چې د الله تعالی د حضور احساس لـــري او دا باور لري چـــې د قیامت پـــر ورځ به د خپلو مســـؤلیتونو حســـاب ورکـــوي، هېڅکله به د رشـــوت، خیانت، یا له مســـؤلیت څخه د سرغړونې لاره نه نیسي. دا د تقوا برکت دی چې انســـان ته دا شـــعور ورکوي چې هـــر عمل یـــې ثبتېږي او که دنیا کې څـــوک پرې خبر نه شـــي، خو د آخرت عدالت ترې نه دی پټ.عدل د فساد پر ضد له ټولو مهم شـــرط دی. که قاضیان، محاســـبین او تفتیـــش کوونکـــي د عدل اصل ته ژمـــن نه وي، نو د فساد مخنیوی ناشـــونی کېږي. عدالت نه یوازې دا چې د فاسدینو د حســـاب‌کتاب وسیله ده، بلکې د ټولنې عام وګړي هـــم مطمئنوي چې که فســـاد ته لاس وانه چوي، نـــو هغوی ته بـــه روا حقونه ورکړل شـــي او پرمختګ به یې یوازې د اهلیت پر اســـاس وي، نه د واسطو او ناوړه اړیکو پـــر مټ. تاریخ شـــاهد دی چـــې هرکله عدالت ټینګ شـــوی، نو فســـاد ته ځای نه دی پاتې شوی، ځکه چې فاسد کســـان پوهېږي چې د عدالت په وجود کې د هغوی ناوړه عملونه نه پټېږي او نه ورته د ســـزا مخنیوی شـــته.د اسلامي امت په تاریخي تجربو کې داسې بېلګې شـــته چې عدالت د فساد د له‌منځه وړلو یوازینۍ اغېزمنه لار ثابته شوې ده. د حضرت عمر بن خطاب (رضي الله عنه) دوران یو روښـــانه مثال دی، چې کله د بیت المال مســـؤلین، د قاضیانو او د تفتیش ادارو مســـؤلان د تقوا، علم او عدل معیارونه پوره کول، نو د فساد جرړې وچې شوې. همدارنګه، د اســـلامي خلافت په هغه دورو کې چې عدالت کمزوری شوی، فساد مخ پر زیاتېدو شوی، ځکه چې فاســـد افراد پوهېدل چې حساب نه ورکوي او مجازات نه لري.

له همدې امله، هغه کسان چې د فساد سره مبارزه کوي، باید نه یوازې د خپلو دندو علمي تخصص ولري، بلکې د تقـــوا او عدل صفتونه هم خپل کړي. که د هغوی ایمان کمزوری وي، یا د عدالت څخه ســـرغړونه وکړي، نو د فســـاد د له‌منځه وړلو پر ځای به یې پیاوړی کوي. یوازې هغه اداري او چارواکي د فســـاد ریښـــې ایســـتلی شي چې پخپله له فســـاد څخه پاک وي، د اخروي مسؤلیت احســـاس ولري او د ټولنې د اقتصادي او اداري اصلاح لپاره د عدل پر بنسټ کار وکړي.

که د اســـلامي شـــریعت دا اصول عملي شـــي، نو مالي فســـاد ته به یو قوي ضربه ورســـېږي. اســـلام د ټولنې د ســـوکالۍ او عدل دین دی او که د خلکو اموال خوندي وي، د دولت شـــتمني د عامو خلکو پر ګټه ولګول شـــي او چارواکـــي ځانونه د ولس خادمان وګڼي، نو د فســـاد ریښې به وچې شي.

# سپېڅلې مېلمنه

پوهندوی ګل رحمن رحماني

دا مېلمنه په کال کې یو ځل راځي، خو هېڅکله هم تش لاس نه وي، سپېڅلې او سپېنه لمنه یې له ډېرو ښکلو او ګران بیه ډالیو څخه ډکه وي، مینه، مهرباني، خوښي، ژغورنه او سکون ویشي، هر چا ته په ورین تندي د سلامتی، روغتیا او کامیابۍ پیغام رسوي. دا مېلمنه د یوه امین قاصد په توګه د څښتن تعالی له لوري د ژغورنې او ښښنې زېري او ډالۍ راوړي، د سترې دنیا له سترو بوختیاوو، جنجالونو او فرمایشونو مو ژغوري او یوه شېبه مو پر خپل پراخه دسترخوان د هغه ذات خوندروې مېلمستیا ته را بولي چې یو نوم یې رازق دی.

هو؛ ددغه مېلمنې نوم درته اخلم، د روژې مبارکه میاشت یادوم، دې میاشتې ته چې د خیر، برکت، رحمت او فضلیتونو میاشت ویل شوې ده، په حقیقت کې یې دا ټول صفتونه د خپل راتګ له شېبې د اسلام د ټولو پیروانو لپاره ثابت کړي، د ډېرو لرې زړونو تر منځ یې واټنونه را لنډ کړي، د بېلتون پر ځای یې وصال، د کرکې پر ځای مینه، د مادي حس پر ځای پاک معنوي حس، د فقر پر ځای غنا او د فاني دنیا پر ځای د اخرت، حساب او کتاب فکر کولو شتمني پیاوړې کوي.

دا ضرور نه ده چې یو څوک د زده کړې او روزنې لپاره ښوونځي، ښوونیز مرکز او استاد ته مراجعه وکړي، ځینې مناسبتونه او معنوي کیفیتونه شته چې انسان ته حس او ادراک ورکوي، بیداروي یې او ټولنیز حس ورکوي، له دې معنوي مناسبتونو یو ستر مناسبت د رمضان میاشت ده، چې پر شتمنو د بېوزلو د بېوزلۍ حالت تجربه کوي او ټولو ته د خوړو پر مهال د څښتن تعالی د ورکړې رزق او روزۍ خوند او قدر پېژندنه وریادوي، هغه څه چې موږ په نورو عادي ورځو کې هېر کړي او ورته پام مو نه دی.

مسلمانانو ته د روژې یو بل تر ټولو ستر معنوي ویاړ د نفس تزکیه ده، هغه نفس چې دنیوي بوختیاوو، روزګار او سرګردانیو وربانديې د ګناهونو او له رباني ښایستونو څخه د پردې کېدو ګرد وربانديې شیندلی دی. موږ تل په دې هڅه کې یوو، چې خپل روح او فکر ته پاکي ورپه برخه کړو، اخلاقي ارتقاء او معنوي رشد ته ورسېږو، همدې معنوي لټون ته د نفس تزکیه وایي، دا یو ژور او معنوي سفر دی او دا امکان را ښښي چې د دنیا له تیاره واټونو او منفي ارخونو تېر شو د نور او روحاني ودې پر لو حرکت وکړو.

دا مفهوم نه یوازې په بېلابېلو ادیانو کې خدای ته رسېدو او د هغه د پاملرنې د جلب لپاره د یوې تګلارې په توګه پېژندل کېږي، بلکې د فلسفې او ارواپوهنې په ډګ کې هم د انسان د ودې او تکامل لپاره یو پړاو ګڼل کېږي، په دې پړاو کې انسان له منفي فکارو څخه ذهن پاکوي، احساسات کنټرولوي او په عمل کې یې جدیت رامنځته کېږي. دغه معنوي سفر په ترتیب سره له موږ سره مرسته کوي چې ارام فکر او د ایمان له نورو څخه مالامال روح تجربه کړو، په ژوند کې داسې پایلو ته ورسېږو چې عمل کې هم معنوي وده او غوړېدنه حس کړو.

د نفس تزکیه د قران عبارت دی، د هغو کسانو لپاره چې غواړي خپل خپل نفس ته وده وکړي، لوړو معنوي مقاماتو ته ورسېږي. هغه څه چې خلک په کې په عمومي ډول د نفس د نفس، توحید، اخلاقي تربیت او یا ورته موردونو سره اشنا کېږي، همدې پروسې ته په قران کریم کې د «تزکیه نفس» نوم ورکړل شوی دی، ددې اصطلاح له مخې تزکیه د ودې او پرمختګ په مانا ده، څو خپل نفس ته وده ورکړو او داسې پایلو ته ورسېږو چې خدای تعالی ته مو نږدې کړي، هغه فاصلې لنډې کړو چې د کال په نورو میاشتو کې زموږ او رب تر منځ رامنځته شوې دي. دا سپېڅلې ملېمنه له موږ ځینې هیلې او غوښتنې هم لري، چې یو څو یې دا دي:

**د دنیوي بوختیاوو راکمول:**

موږ ټول د خپل ژوند د مخته وړلو لپاره دندې، سوداګري او یا نورې اړوندې کاري بوختیاوې لري، په رسمي ډول خو د کار ساعتونو د روژې په خاطر را لنډېږي، همداسې ازادو کاروباریانو او د هغوی همکارانو یا تر لاس لاندې کسانو ته لازمه ده چې بوختیاوې را کمې کړي، لږ معنوي سفر پیل کړي، له دنیا نه دین ته پام واړوي او د یوه ښه روژتي مسوولیتونه تر سره کړي.

**له خواله شبکو او اړیکو لرېوالی:**

له بده مرغه چې نن سبا خواله شبکې په ځانګړې ډول فېسبوک، واتسپ، ټویټر او نورې شبکې د خلکو په ځانګړې ډول ځوانانو په یوه نا سالمه بوختیا اوښتې دي، په ناسته، موټر او سفر کې ورسره بې ضرورته لګیا وي، ځینې خو بیا د همدې اعتیاد او بوختیا په دوام د روژې مبارکې میاشتې ګران بیه شېبې هم په دې چارو مصرفوي او په حقیقت کې غواړي چې تر روژه ماتې خپلې شېبې را لنډې کړي، ښه به دا وي چې خپل زړه او ذهن ته رجوع وکړي، په تلاوت، اذکارو او نورو سالمو بوختیاوو یې ډېرته له معنوي انرژۍ څخه مالامال کړي.

**صدقې او خیراتونه زیاتول:**

په روژه مبارکه میاشت کې صدقې او خیراتونه د نورو عادي ورځو په پرتله له لوړ اجر او بدلې څخه برخمنې دي، بل اړخ ته زموږ یوه زیاته برخه هېوادوال غریبان دي، په سړکونو، لارو کوڅو او د جوماتونو مخکې به مو په ګڼو داسې ښځو، ماشومانو او بوډاګانو سترګې ولګې، چې لاسونه یې د خیرات غوښتلو لپاره اوچت کړي وي، سمه ده چې د دوی اړتیاوې په خیراتونو او صدقو نه پوره کېږي او له بلې خوا حرفوي سوالګرو هم د دوی ځای نیولی دی؛ خو هر څوک تر خپل وس او توانه مسوولیت لري چې په پټه او ښکاره صدقې او خیراتونه ورکړي، بدله دې د خپل نیت له مخې پاک څښتن تعالی ته پرېږدي.

د مرورو او ناروغو خپلوانو حال احوال اخیستل:

موږ په ورځنې ژوند کې په ډېرو عادي مسایلو له خپلو خپلوانو، همکارانو او کاروباري شریکانو سره اړیکې پرې کوو، راشه درشه پرېږدو، روژه د همدې لپاره یو فرصت دی چې باید ډېرته پخواني نفرتونه هېر کړو، زړونه سره نږدې کړو، ددغه درنې مېلمنې په برکت یو بل ډېرته را خپل کړو، تر څنګ یې د هغو ناروغو خپلوانو او دوستاتو ته د پوښتنې ښه فرصت لرو چې د ناروغۍ په بستر پراته دي، زموږ له ورتګ سره هغوی د چایو او ډوډۍ لپاره نه تکلیف کېږي او ضمن کې مو له ورتګ او دعاګانو روحیه اخلي.

**دیني او فکري مطالعه:**

دا خبره مې تر ډېره لوستو، پوهانو او هغو کسانو ته متوجه ده چې په ښوونیزو او تحصیلي ادارو کې کار، څېړنې او مطالعات تر سره کوي، ښه به وي چې ددې میاشتې په جریان کې خپله هره موضوع او د مطالعې زاویه همدې موضوع ته ځانګړې کړي، پر فضایلو او برکتونو یې لیکل او څېړنې وکړي، څو لوستی او ځوان نسل د دوی د دیني او فکري څېړنو او مطالعې په پایله کې اوچت دیني پوهاوي ته ورسېږي او په دې ډول زموږ دیني پانګه په خپلو ژبو هم بډایه شي. عام لوستونکي له قرانکریم وروسته د احادیثو، سیرت، فقهې، اسلامي تاریخ او پخواني اسلامي برم او څېړو د مطالعې له لارې له خپل دین او فرهنګ سره اړیکه لا پیاوړې کړي.

**د عباداتو او اذکارو په خوند ځان پوهول:**

موږ هر وخت فرضي او نفلي عبادتونه کوو، خو هغسې چې لازمه ده ښایي هېڅ وخت مو نه وي تر سره کړي، مهمه خبره له عبادت څخه روحي خوند او تسکین تر لاسه کول دي، کوم روحي لذت چې له عبادت څخه یې تر لاسه کېږي، ممکن په عادي ورځو کې یې د خپل کار روزګار اړوندو اندېښنو، ستونزو او کمې پاملرنې په سبب ونه شو کړلی، فکري تمرکز مو کم وي، خو د فکري او معنوي ریاضت په پایله کې د روژې هره شېبه معنوي لذت او خوند لري، د عباداتو او اذکارو ثواب او روحي خوند څو چنده کېږي، ځکه معده خالي وي او په د طب او روان له اړخه په داسې حالاتو کې فکري تمرکز پیاوړی کېږي، باید د هرې شېبې عبادت د خوند حاصلولو او قلبي اطمنان هڅه وکړو.

دا غوښتنې په حقیقت کې ددغه مېلمنې د هر کلي او درنښت پر وړاندې زموږ ایماني وجیبه ده، چې باید په هر حالت کې یې تر سره کړو، عزت او درناوی وکړي، دغه قاصده له خپل کوره له ښو خاطرو سره رخصت کړو، څنګه چې ډک لاسونه راغلې وه، ډېرته یې د رب حضور ته ډک لاسونه واستوو او زموږ هر یوه پر وړاندې مثبت او هیله ښښوونکي پیغامونه وړاندې کړي دي.

# انسداد تورخم؛ زیان یا فرصتی برای استقلال اقتصادی؟

رحمت‌الله فیضان

افغانستان برای مدت طولانی در بخش‌های تجارتی و اقتصادی به بازار پاکستان وابسته بود، اما تحولات اخیر نشان می‌دهد که با کاهش تجارت، این کشور توجه خود را به رشد صنایع داخلی معطوف کرده است. این تغییر به‌ویژه برای ولایت‌های شرقی، مانند ننگرهار، اهمیت دارد، زیرا زمینه‌ای برای توسعه تولید داخلی فراهم کرده است.

روابط تجارتی میان افغانستان و پاکستان به دلیل عوامل سیاسی و امنیتی کاهش یافته است و در نتیجه، افغانستان به جای واردات، بر توسعه تولید داخلی تمرکز کرده است. اکنون بسیاری از اموال مورد نیاز که پیش‌تر از پاکستان وارد می‌شدند، مثل مواد ساختمانی، دانهٔ مرغ، لبنیات، فرش، قالین پلاستیکی و تجهیزات زراعتی ، در داخل کشور تولید می‌شوند. این تحول، گامی مهم در جهت خودکفایی اقتصادی محسوب می‌شود. ننگرهار، که به عنوان دروازهٔ شرقی افغانستان شناخته می‌شود، به دلیل داشتن چهار فصل، ظرفیتهای وسیع در سکتورهای زراعتی، صنعت و منابع معدنی دارد. این ولایت به دلیل استخراج معادن، پارک‌های صنعتی و تولیدات زراعتی، منبع مهمی برای تولید داخلی به شمار می‌رود و در سال‌های اخیر، گام‌های جدی برای توسعه تولیدات داخلی در آن برداشته شده است.

با این تغییرات، افغانستان تلاش کرده است که روابط تجارتی خود را با کشورهای دیگر، مانند ایران و کشورهای آسیای مرکزی، وسعت دهد تا در بند انحصار اقتصادی پاکستان نباشد. بسته شدن دروازه تورخم نه تنها فرصتی برای رشد تولید داخلی افغانستان فراهم کرد، بلکه به اقتصاد پاکستان نیز زیان وارد ساخت.

بازارهای ولایت‌های شرقی، که پیش‌تر مراکز اصلی برای اموال پاکستانی بودند، اکنون برای اموال ایرانی و سایر کشورها باز شده‌اند که این امر، ضرر اقتصادی بزرگی برای تاجران پاکستانی محسوب می‌شود.

مسیر جدید تجارت افغانستان نشان می‌دهد که اگر این کشور به رشد تولید داخلی ادامه دهد و روابط تجاری خود را با بازارهای جایگزین گسترش دهد، می‌تواند گام‌های مهمی در جهت استقلال اقتصادی بردارد. برای تحقق این هدف، دولت باید زمینه‌های بیشتری برای سرمایه‌گذاری در تولیدات داخلی فراهم کند، پارک‌های صنعتی را گسترش دهد و تنوع مسیرهای تجاری را دنبال کند.

به طور کلی، کاهش تجارت با پاکستان، افغانستان را در موقعیتی قرار داده است که از طریق توسعه تولید داخلی، به سوی خودکفایی اقتصادی حرکت کند. اگر این روند ادامه یابد، افغانستان در سال‌های آینده به اقتصاد متکی به خود نزدیک‌تر خواهد شد و وابستگی آن به بازار پاکستان کاهش خواهد یافت.




# غزه در خـــون، امت در آزمون

منور مظهری



دوباره ناله‌ی غزه بلند شده است، دوباره فریاد مظلومیت از آن سرزمین مقدس به گوش می‌رسد. دوباره خون بی‌گناهان، زمین را رنگین ساخته است. این‌بار نیز همان دست‌های ناپاک، همان گرگان در لباس آدمی، همان دشمنان دیرینه‌ی اسلام، دست به خون زنان و کودکان آغشته‌اند. هر بمبی که بر سر بی‌گناهان فرو می‌آید، مهر تأییدی است بر وحشی‌گری صهیونیست‌ها، سند رسوایی مدعیان حقوق بشر، و داغ ننگی بر پیشانی آنانی که دم از عدالت و صلح می‌زنند.

رژیم صهیونیستی، این جرثومه‌ی فساد، با حمایت آشکار استکبار جهانی، هر روز دست به جنایت تازه‌ای می‌زند. امریکا، که خود را مدافع آزادی می‌داند، در پشت پرده، سلاح می‌فرستد و پول می‌دهد تا این قتل‌عام ادامه پیدا کند. اروپا، که دم از انسانیت می‌زند، در برابر این جنایت‌ها یا خاموش است، یا توجیه‌گر. سازمان ملل، این تشکیلاتِ بی‌خاصیت، جز ابراز «نگرانی عمیق»، هیچ کار دیگری از دستش برنمی‌آید. اما از این‌ها که بگذریم، آنچه بیش از همه قلب هر مؤمن غیرتمند را به درد می‌آورد، خیانت برخی حکام عرب است که به‌جای حمایت از فلسطین، دست در دست دشمن گذاشته‌اند. وای بر آنان که ننگ سازش با صهیونیست‌ها را به جان خریدند! وای بر آنان که با خیانت‌شان، خون مظلومان را به ثمن بخس فروختند!

اما دشمن بداند، تاریخ گواه است که هیچ ظلمی پایدار نمانده است. اگر امروز در سایه‌ی حمایت غرب، خود را قدرتمند می‌بیند، اگر امروز گمان می‌کند که با بمب و موشک می‌تواند مقاومت را درهم بشکند، سخت در اشتباه است. این امت، امتی است که تاریخش سرشار از حماسه است. این ملت، ملتی است که در سایه‌ی ایمان، زنده است. هر خانه‌ای که ویران شود، عزم این مردم را محکم‌تر می‌کند. هر خونی که ریخته شود، درخت مقاومت را آبیاری می‌کند.

ای مسلمانان! آیا وقت بیداری نرسیده است؟ آیا رواست که در این ماه مبارک رمضان، در حالی که بر سفره‌های افطار خود نشسته‌اید، برادران و خواهران شما زیر بمباران دشمن جان بدهند و شما خاموش بمانید؟ آیا نشنیده‌اید که پیامبر«ص» فرمود: ترجمه: »کسی که شنید صدای یک مظلوم مسلمان را که کمک می‌خواهد از برادر مسلمان خود پس کسی که جوابش را نشنید از جمله مسلمانان نیست «؟ پس کجا است غیرت اسلامی؟ کجا است فریاد حمایت از مظلوم؟ کجا است دست یاری به فلسطین؟

بدانید و آگاه باشید که دشمن هرگز از خون‌ریزی سیراب نخواهد شد. اگر امروز فلسطین را تنها بگذارید، فردا نوبت به شما خواهد رسید. اگر امروز در برابر این ظلم خاموش بمانید، دیر نخواهد بود که این آتش به در خانه‌ی شما نیز برسد. همان دست‌های پلیدی که امروز فلسطین را می‌سوزانند، فردا در کمین دیگر سرزمین‌های اسلامی خواهند بود. دشمن را جز با قدرت نمی‌توان عقب راند، و امروز مقاومت تنها راه عزت است.

صهیونیست‌ها بدانند، این امت زنده است، این امت بیدار است. این جنایات، نه ما را به زانو درخواهد آورد، و نه پرچم مقاومت را بر زمین خواهد انداخت. روزی خواهد رسید که این غده‌ی سرطانی، از دل جهان اسلام ریشه‌کن شود. این وعده‌ی الهی است، و خداوند«ج» هرگز خلف وعده نمی‌کند:

پس ای مسلمانان! بدانید که پیروزی از آنِ شما است، اگر بیدار شوید، اگر قیام کنید، اگر حق خود را از حلقوم دشمن بیرون بکشید. این فریاد غزه است، این ندای مظلومان است، و شما را به قیام فرامی‌خواند برخیزید!

# شعر او ادب

## ناقراره غزه

**ارسلا حسان**

له خاورو سره خاورې ده هــواره ده غــزه
یتیمه ده څـوک نه لري بې پلاره ده غـزه

تر څنګ یې د اُمید برجونه ټول را نړېدلي
حمزه دی که هنیه او بې سینواره ده غزه

پرې غرونه ویلي شوي ځمکه هم هواره شوې
شـــپېلۍ د اسرافـــیل ته نور تیاره ده غزه

مستوره د اُمت پیغله یهودو کړه سرتوره
حجاب د غزې نشته بې وقـــاره ده غزه

د واه معتصما چیغې یې نه اوري ګونګي شول
عرب په خوب بیده دي بې سالاره ده غزه

حسانه د مظلومې خور د ژوند وروستۍ سلګۍ دي
یاســـین پرې تلاوت کـړئ ناقراره ده غــزه

## غزل

**راشد کامران**

عجب وخت دی، پنځلسم قرن روان دی
شرق او غرب د مادیت سیلاب اخیستی
له خالق سره رشته کمزورې شوې
مسلمان د امتحان ګرداب اخیستی

په خوارې عنوان ترخه زهر خرڅېږي
له هر لوري په اسلام باندې وارونه
څه فتنې د تورې شپې په څېر خپرې دي
خدایه تت شول د اعمالو څراغونه

د وروستي امت صادقه پیغمبره
ستا خبره نن یوه یوه رښتیا شوه
له حجاز څخه د شِرک څادر ټول دی
خو را رنګه ورته لر او بر دنیا شوه

عرب اوس هغه شپانه عربان نه دي
کړدۍ نشته اوس لری د « خلیفه » برج
بلډنګونه یې اسمان سره غږېږي
علامه ده د قیامت، د « الساعة » برج

دوی د موسم الریاض په ننداره دي
نن عربو لاس وینځلي له اسلامه
د غزې خورکۍ الله ته ګیله وکړه
ګیله مه کړه له عراق، مصر او شامه

د غزې د ماشوم ساندې پورته کېږي
یا که غږ د اسرافیل شو نا ګهانه
زلزلې دې کومې ورځې ته ساتلې
را نړېږې ولې نه لویه اسمانه

د تاریخ پاڼې لګیا دي، سره وایي
د چنګېز او هلاکو وحشت مو هېر شو
د اقصی مینارو چیغې کړې موسی ته
ستا ملت د خپل قاتل فرعون په څېر شو

تر دې لویه بدنامي به نوره څه وي
شرمنده یهود راټول زموږ اشر ته
خود به څګ غوندې بې توله یو راشده
د دنیا مینه مو وختله سر ته

# از راه مطالعه عادات و سنن ناپسند جامعه تغییر می کند

**نوری**

از طریق ترویج کتاب و مطالعه عادات و سنن ناپسند در یک جامعه تغییر کرده می‌تواند. هیچ کشوری را در جهان سراغ نداریم که بدون کتاب و مطالعه به سطح عالی فرهنگ و ترقی اجتماعی رسیده باشد. از راه مطالعه مغز انسان رشد می‌کند و قوه ادراکش بالا می‌رود. شاروالی کابل به خاطر نهادینه کردن فرهنگ شهری دست به یک سلسله کارها زده که بسیار سودمند است. شاروالی کابل کتاب، بروشور، مجله، اوراق مطبوع و خریطه‌های تکه‌ای را به‌صورت رایگان برای شهروندان توزیع کرد. نعمت‌الله بارکزی نماینده شاروالی کابل به رسانه‌ها گفته «ما سعی می‌کنیم با این کار که فرهنگ‌های که ضعیف‌تر و مشکل زا است در کابل این‌ها را ضعیف ساخته و فرهنگ‌های خوب را جاگزین آن کنیم.» شاروالی از شهروندان کشور می‌خواهند که«در پاک کاری شهر نیز سهیم شوند.»هنگامی که کتابی را تهیه می‌کنیم و قصد مطالعه آن را داریم، مسیر ورود به دنیای جدیدی را برای خود ما باز می‌کنیم. راهی که در هنگام پیوستن به آن، درهای گران بهایی از تجارب دیگران برای ما گشوده می‌شود. با توجه به اهمیت کتاب و کتاب خوانی می‌توانیم اثرات بی نظیر مطالعه را در زندگی فردی و اجتماعی خود احساس کنیم. از دلایل مهم و اثر گذار کتاب خواندن می‌توان به کاهش استرس، کمک به دیگران و کسب دانش مفید و با ارزش اشاره کرد. خواندن کتاب، دارای فواید بسیاری می‌باشد که شاید از آن آگاه نباشیم. یکی از مهم ترین فواید مطالعه روزانه، یادگیری می‌باشد. کتاب ها با در اختیار گذاشتن اطلاعات در مورد موضوعات مختلف، دانش ما را افزایش می دهند و می توانند در کسب علوم با ارزش و مفید بسیار کمک کننده باشند. طبق تحقیقات انجام شده توسط دانشمندان «مطالعه کتاب، شبکه پیچیده‌ای از مدارها و سیگنال‌ها را در مغز تحریک می‌کند و از آلزایمر و زوال مغزی جلوگیری به عمل می‌آورد. همان طور که ورزش برای سلامتی بدن مفید می‌باشد، خواندن کتاب و حل جدول می‌تواند در تقویت نیروی مغز مفید و تاثیرگذار واقع شود». از بارز ترین اهمیت کتاب و کتاب خوانی می‌توان به بهبود عملکرد حافظه اشاره کرد. هر چه در مغز خود اطلاعات جدیدی ذخیره کنیم، حافظه بهتر تقویت می شود و خاطرات را به شکل موثرتری به یاد آورده میتوانیم. یکی از



سرگرمی های جذاب با قیمت مناسب، کتاب می‌باشد. روان شناسان بر این باور هستند که بهترین شیوه آموزش، ایجاد فضایی می‌باشد که در کنار سرگرمی، مطالب مهم تدریس شوند. اکثر کتاب‌هایی که امروز منتشر می‌شوند با همین هدف طراحی شده و ما می‌توانیم به جای تماشا کردن فلم، کتابی را بخوانیم که هم جنبه سرگرمی دارد و هم مطالب را به ما آموزش می‌دهد.امروز با توجه به مشکلات متعددی که در زندگی وجود دارد، مطالعه کتاب سبب می شود که تمام امور ذهنی خود را بر یک موضوع متمرکز کنیم. خواندن کتاب همچنین در کاهش استرس و افزایش تمرکز می‌تواند بسیار مؤثر واقع شود. چرا که با سرعت بالا به اطلاعات پیچیده تسلط پیدا کرده و در زمان کمتری به نتایج عالی دست پیدا می‌کنیم. وقتی نوشته‌هایی همچون رمان را مطالعه می‌کنیم، با زندگی درونی و احساس شخصیت‌های مختلف آشنا می شویم و می‌توانیم احساسات و دیدگاه‌های دیگران را بهتر درک کنیم. تحقیقات نشان داده که فقط ۳۰ دقیقه مطالعه می‌تواند فشار خون، ضربان قلب و احساس روحی را کاهش دهد. مطالعه کتاب در مقایسه با پیاده روی، نوشیدن یک پیاله چای و بازی‌های ویدیویی روشی بهتری برای کنترول استرس محسوب شود. یکی از جالب ترین اهمیت کتاب و کتاب خوانی، تقویت سطح لغات ما می‌باشد. وقتی ما عادت به خواندن را در خود ایجاد می کنیم، سطح لغات خود را بهبود می‌بخشیم. تسلط بر لغات بیشتر، اعتماد به نفس را در ما افزایش می دهد که می‌تواند در زندگی شخصی و اجتماعی تأثیر بسیار داشته باشد. اگر بیشتر مطالعه کنیم، طبیعتاً در نوشتن مهارت بالایی کسب می کنیم. از آن جایی که دایره لغات و تلفظ ما با مطالعه منظم بهبود می‌یابد، در نهایت ما را می‌تواند به نویسنده بهتری تبدیل کند. کسانی که زحمت زیاد می‌کشند موفقیت نصیب شان می‌شود. در اکثر لحظات زندگی، تمایل داریم که از ازدحام‌های روزمره رهایی پیدا کنیم. مطمئناً ساختن پروگرام یک سفر همیشه مقرون به صرفه نمی‌باشد. خواندن کتاب، به ما این امکان را می‌دهد که آرامشی همچون یک سفر را تجربه کنیم. جالب است بدانیم، افرادی که از فشارخون بالا یا اضطراب رنج می برند، می توانند آرامش شگفت انگیزی را در مطالعه به دست آورند. به راه انداختن کمپاین‌های کتابخوانی و مطالعه می‌تواند عادات و سنن ناپسند را در جامعه کاهش دهد و سبب انکشاف فرهنگی و اجتماعی شود.

# په روژه کې د اعتکاف ستر عبادت

**ژباړه او وضاعت: مولوي نورالحق مظهري**

د روژې په مبارکه میاشت کې اعتکاف هغه مبارک عبادت دی چې پر کولو یې ډېر زیات ثواب مرتب دی او اعتکاف په قرآن او حدیث باندې ثابت دی په قرآن شریف کې راځي: ژباړه: تاسې ښځو ته مه ور نږدې کېږئ په داسې حال کې چې تاسې په جوماتونو کې معتکفین وشي او په حدیث شریف کې راځي:

ژباړه: د عبدالله ابن عمر رضي الله عنهما څخه روایت راغلی دی چې رسول الله صلی الله علیه وسلم به د روژې میاشتې په لسو آخرو شپو کې اعتکاف کوی.

په دې آیت او حدیث باندې مشروعیت د اعتکاف ثابتېږي او اعتکاف دې ته وایي چې د ثواب په نیت په خاصه طریقه او خاص صفت باندې سړی په مسجد کې تر معلومې مودې پورې کېني.

علامه ابن القیم رحمه الله فرمایلي دي: اعتکاف هغه عبادت دی چې مقصود او اصلي هدف ورڅخه پر الله پاک باندې د خپل زړه تړل دي، پر الله پاک باندې د خپلو ټولو تصوراتو راټول دي، ځان د مخلوقاتو څخه فارغ کول او د الله پاک په ذکر باندې ځان په پوره توګه مصروف کول دي؛ داسې چې په هر وخت کې په خاصه توګه د غم او مصیبت په وخت کې د معکتف ټوله توجه او پاملرنه د الله پاک ذکر او محبت ته وي د زړه ټول مقصود او هدف یې د الله پاک سره محبت او د هغه رضا وي.

د الله پاک د خوشحاله کولو لپاره خطرونه او ستړیاوې پر ځان باندې ګالي، د الله پاک په خوشحاله کولو کې او الله پاک ته د نږدې کېدلو لپاره خپل فکر په کار اچوي.

نو د دې پر ځای چې د مخلوقاتو سره محبت وکړي د الله پاک سره یې محبت ډېرېږي چې په همدغه محبت باندې دی د هغې ورځې د محبت مستحق ګرځي کومه ورځ چې بېله الله پاک بل هیڅ محبت کوونکی نشته او بېله الله تعالی هیڅوک د انسان په درد باندې نه خوري او هغه ورځ د وحشت او یواځیوالي ده په قبر کې.

په قبر کې تنها د الله پاک محبت دی چې انسان ژغوري، د قبر د عذاب څخه نجات ورکوي او د جنت د نعمتونو دروازې ورباندي را خلاصوي چې د اعتکاف څخه مهم او لوی هدف هم دغه دی.

د دې لپاره چې معتکف وکولای شي سم او مقبول اعتکاف وکړي نو لاندې آداب باید په نظر کې ونیسي:

۱- خپل نیت دې خالص او صفا کړي او یواځې دې د الله پاک رضایت او د رسول الله صلی الله علیه وسلم په سنت باندې عمل کول خپل په زړه کې را وګرځوي او د الله تعالی څخه دې د اجرت تر لاسه کولو په نیت اعتکاف وکړي.

۲- د عبادت لپاره دې ځان فارغ کړي، د ټولو هغو شیانو سره دې رابطه قطعه کړي چې د ده د عبادت مخنیوی کوي او الله پاک ته دې تنها په زړه باندې توجه وکړي.

۳- بېله شرعي او انساني ضروت څخه دې د مسجد څخه نه وځي.

۴- پر ورځنیو نیکو اعمالو او ذکرونو دې کوښښ وکړي، لکه رواتب سنتونه، د اشراق او غرمې لمونځ، د شپې او تهجد لمونځ، تل په اوداسه باندې اوسېدل، د سهار او ماښام منقول ذکرونه کول، د فرضي لمونځونو وروسته ثابت اذکار نه هېرول، د موذن جواب ورکول او داسې نور هغه اعمال چې د معتکف د اعتکاف د مقصود برخه وي.

۵- معتکف چې د هر لمانځه مخکې ویدېږي لمانځه ته دې وختي کېني تر څو په ښه طریقه اودس وکړي او په پوره اطمینان او آمادګۍ سره لمونځ آداء کړي.

۶- معتکف دې نفلي عبادات ډېر کوي او د دې لپاره چې احساس د ستړیا ونه کړي په عباداتو کې دې تنوع راوړي مثلاً کله ناکله دې لمونځ کوي، کله دې بیا تلاوت د قرآن کوي، کله دې بیا تسبیح، تهلیل، تحمید او تکبیر وایي، کله دي دعاء کوي، کله دي استغفار کوي، کله دې پر رسول الله صلی الله علیه وسلم باندې درود وایي او ځینې وختونه دې د الله پاک په مخلوقاتو کې تفکر کوي تر څو د الله پاک عظیم قدرت ته متوجه شي او عاجزي یې په برخه شي.

۷- هغه څوک چې اهل د مطالعې وي هغه دې د ځانه سره ښه په زړه پورې کتابونه کېږدي او کله ناکله دې مطالعه کوي په خاصه توګه د قرآن تفسیرونه چې په مطالعه کولو سره یې د قرآن تلاوت ته نور هم د انسان شوق کېږي.

۸- معتکف دې لږ خوراک کوي، عادي خبرې دې لږ کوي او خوب دې لږ کوي تنها دومره خوراک، خبري او خوب دې کوي چې خپل ضرورت ورباندي رفع کولای شي نور ټول وخت دې عبادت ته ورکړي ځکه د خوراک، خوب او خبرو په لږولو سره د انسان زړه نرم کېږي، نفس یې عاجزه کېږي، وخت یې د ضیاع څخه ساتل کېږي او د ګناه څخه ژغورل کېږي.

۹- معتکف باید د اوداسه پر درلودلو ډېر حریص وي او هېڅ وخت بې اودسه پاته نشي او بې اوسده ویده نه شي.

۱۰- معتکف باید د سنتونو پر تطبیق، د حق او صبر پر وصیت، پر امر بالمعروف او نهي عن المنکر، پر نصیحت او تذکر او په نیکو کارونو کې د نورو سره پر مرسته کولو ډېر حریص وي.

هغه شیان چې معتکف باید ځان ورڅخه وساتي:

۱- مسجد ته دې ورته ډېر ملاقات کوونکې نه راځي ځکه دا کار د دې سبب کېږي چې دی عبادت لږ وکړي او ډېر وخت دي په مجلس او بانډار کې ورباندې تېر شي.

۲- په ټلیفون دې ځان ډېر نه مصروفوي تنها د ضرورت د رفع کولو په اندازه دې استفاده ورڅخه کوي.

۳- ډېر خوراکونه دې پر ځان باندې نه راکوټه کوي ځکه دا کار د دې سبب جوړېږي چې دی د ډېر خوراک وکړي او د ډېر خوراک نو بیا ځان ته ډېر تاوانونه دي.

۴ - ډېر خوب دې نه کوي، له خوب څخه دې ژر را ولاړېږي، څوک چې یې د خوب څخه ویښ کړي د هغه څخه دې مننه او تشکر وکړي او ورته په خښم کېږي دې نه.

۵- وخت او فرصت دې نه ضایع کوي بېله عباداتو دې بل په هېڅ شي باندې ځان نه مصروف کوي.

۶ - داسې څوک دې په اعتکاف کې د ځانه سره نه کېنوي چې د اعتکاف آداب نه مراعات کوي او د دې احتمال شته چې دی د هم ورسره په تکلیف شي او اعتکاف دي ورباندې خراب کړي.

۷ - د مسجد څخه دې بېله انساني او شرعي اړتیا څخه نه را وځي او کوښښ دې وکړي چې ډېری وخت په مسجد کې پاتې شي.

**منبع: تحف رمضانیة.**

# رمضان ماه اصلاح و پالایش معنوی انسان مؤمن است

محمد مجاهد



در ماه رمضان دروازه های رحمت پروردگار یکتا به روی همه امت اسلامی باز می‌گردد و انسان بر اساس قهرمانی و ارادۀ خودش تربیت می‌شود، این ماه اراده مسلمانان را قوی میکند، انسان مؤمن با نیرو و اراده خویش از موارد که روزه را فاسد می‌کند پرهیز می‌نماید، هیچ کس او را زنجیر نکرده؛ فقط خداوند ناظر اعمال او است و این نکته‌ی ظریف دلالت لطیفِ بر قوت و نیروی ایمان وی دارد.

لذا همه باید برای اصلاح و پالایش معنوی خویش در این دهۀ پسین بشتابیم و در نخست باید تجدید میثاق خود را با همه‌ی ارزشهای معنوی توام با قلب مطمئن، عزم راسخ، قلم توبه و جوهر اشک بنویسیم؛ زیرا قوت‌های شیطانی انسان مهار می‌شود و در دهۀ اخیر این ماه نزول قرآن تحولی عظیمِ در زندگی انسان‌های مؤمن رونما می‌گردد.

بیست روز از ماه نزول قرآن گذشت، دهه رحمت و دهه مغفرت سپری شد، اکنون هر شخص با خودش محاسبه کند و سنجش نماید، که در این بیست روز حق این ماه مهمانی پروردگار را چگونه انجام داده؟!

آیا توانسته با انجام اعمال، رفتار و اخلاق نیک پروردگار خویش را راضی کند؟ خوش بحال آنانکه جواب شان در موارد فوق الذکر مثبت است و رضایت رب العالمین را بدست آوردند، اگر خدا ناخواسته در موارد یاد شده جواب منفی داریم؟ و دو دهۀ این ماه و ایام با برکت را با اعمال ناشایسته سپری کردیم، هنوز یک دهه دیگر فرصت داریم، فرصت جبران، فرصت توبه، فرصت ندامت از گذشته، فرصت رجوع به اعمال شایسته، فرصت بیرون شدن از بردگی نفس و فرصت وابستگی به فرامین، احکام و اوامر شرع مبین.

چنانچه مستحضر هستیم، ماه رمضان، ماهِ مهمانی پروردگار یکتا برای همه‌ی مسلمانان می باشد و با مهمانی بنی نوع بشر متفاوت است، این مهمانی پروردگار تزریق تقوی و پرهیز از موارد که مربوط به شهوات و خود خواهی مؤمن می‌شود است.

بنابراین لازم است که ماه مهمانی پروردگار با آدابش عمل شود، یعنی آداب روحی اش مثلا دعا به معنای واقعی اش باشد، تلاوت، ذکر به معنای واقعی؛ یعنی آن ذکرِ که نفوس را مطمئن می کند، آن ذکرِ که یاد ایزدمنان و حاضر و ناظر بودن او را در هر زمان، احوال و مکان تداعی می‌کند باشد.

اما اگر بنام روزه فقط و فقط دهان را از مطعومات، ماکولات و مشروبات ببندیم و خدا ناخواسته دهان را به غیبت مردم در این ایام باز کنیم و شب های این ماه مهمانی پروردگار را به مجالس شب نشینی دایر و فرصتِ که باید به ذکر و یاد پروردگار باز می‌شد، به غیبت، تهمت،کذب و اهانت به سایر مسلمین تا سحر انجام دهیم، چیزی عاید ما و شما نمی شود و اثری از تقوی و زهد بر ما مرتب نمی گردد؛ بلکه چنین صائم (روزه داری) آداب مجلس مهمانی پروردگار عالم را رعایت نکرده، حق ولی نعمت خویش را ضایع نموده است؛ ولی نعمتِ که پیش از آفرینش بنی نوع انسان، همه‌ی وسایل زندگی و آسایش را برای وی فراهم کرده، اسباب تکامل را تهیه نموده، پیامبر اکرم را برای هدایت او فرستاده، کتاب آسمانی (قرآن) را نازل فرموده، برای رسانیدن انسانیت به کانون و معدن، عظمت و قدرت داده، عقل و ادراک عنایت کرده و مورد کرامت قرار داده و در این ایام و لیالی از بندگانش دعوت به عمل آورده که به مهمانخانه او وارد شوند و بر خوان نعمت او بنشینند و شُکران حضرتش را تا آنجا که در توان شان است ادا نمایند.

لذا وقتیکه در این ماه از خوان نعمت پروردگار بهره مند می شویم، از وسایل، اسباب و آسایش که در اختیار مان قرار داده است استفاده می‌کنیم، عادلانه و منصفانه نخواهد بود، که با مولا و میزبان خویش مخالفت ورزیم؛ اسباب و وسائلِ که پروردگار به مایان ارزانی داشته، علیه او و بر خلاف خواست او به کار به بریم.

بدون شک که این کفران نعمت تبعات مهلک و بسیار زشت و قبیحِ در پی دارد. همه ما امت اسلامی مسؤلیتَ داریم، که سنجش و حساب کنیم، که از این ضیافت چقدر بهره‌گیری کردیم و راه درست را یافتیم. ضیافت پروردگار در رمضان رحمت الهی است؛ این ضیافت تَرک شهوات، خوردنیها، نوشیدنیها و جهات دیگری که شهوات بنی نوع انسان آنرا اقتضا می‌کند است.

با گذشت بیست روز از ماه رمضان ده روز دیگر از این بهار عبادت و پالایش معنوی بشریت باقی است. دهه‌ی اخیر این ماه بهترین ریاضت سالکان کوی دوست برای رهایی از زنجیرهای ظلمانی و ماشین محرک سیر صعودی انسان به صراط مستقیم و وصل شدن به گنجینه عزت و عظمت پروردگار است.

دو دهۀ اول این ماه مقدمه ورود به این گنجینه ای معنوی است، اُنس و مناجات بیست روز گذشته، انتظارگاهِ ورود به این عزت و رسیدن به معدن عظمت الهی می‌باشد.

فلهذا در این دهه ضمن اینکه در بیست روزِ گذشته به اصلاح و تهذیب نفس پرداخته شده، لیاقت مراحل و مراتب شمولیت را در این دهۀ نجات بخش مستفید می‌شویم.

بنابراین لازم است، تا گوشه ای از مشاهدات ام المؤمنین عایشه (رض) را از سیره پیامبر اکرم در دهۀ اخیر مبارک رمضان به عنوان الگوگیری از رفتار ایشان جهت درک بهتر و بیشتر یاد آور شویم: (نبی اکرم( ص) در دهه‌ی اخیر رمضان به عبادت، اعمال و فعالیت های معنوی خویش می افزودند و دیگران را به کثرت اعمال در روزهای اخیر تشویق می‌کردند.)

دعا، مناجات و نیایش ارتباطِ است مستقیم، مباشر و آسانِ که بنده با پروردگار خود برقرار میکند.

فیصدی پذیرش و اجابت خواسته های مادی و معنوی بنده‌ی روزه دار بویژه در شبهای دهۀ اخیر این ماه با الطاف و عنایات خاصۀ ذات اقدس بالا می رود. چه زیباست که بنده‌ی گناهکار جهت شستشوی روحی و معنوی در این شبها با دعا و نیایش، رحمتهای ویژه‌ی پروردگار یکتا را متوجه خود کند و آمرزش گناهان خویش را بطلبد.

ام المؤمنین عایشه( رض) می فرماید: (خدمت پیامبر( ص) عرض کردم، اگر شب قدر را دریافتم از پروردگارم چه بخواهم؟ آنحضرت فرمودند، این گونه دعا کن: پروردگارا! تو بخشایندۀ مهربان هستی، عفو و بخشش را دوست داری، مرا ببخش.) لذا نبی مکرم اسلام در دهه‌ی اخیر رمضان جهت اینکه به نحو احسن از مزایا، انوار، برکات، رحمت ها و منافع روحی و معنوی بیشتر بهره‌مند شوند، خانه و خانواده را به مدت ده روز ترک می‌کردند و با توجه کامل برای عبادت خداوند متعال در مسجد اعتکاف می‌نمودند.

شب‌های دهۀ اخیر این ماه، اوج بال گشودن در فضای نیایش و بندگی، و نهایت شکوفایی رحمت الهی بر بندگان است. در این شب ها ایجاب میکند که رو به آینه محاسبه بنشینیم و چهره خویشتن را بی‌غبار ببینیم و همراه باران اشک، دل را در سحر رحمت و مغفرت پروردگار شستو شو دهیم.

این شب‌ها، شب های گشودنِ سفره قلب و ریختن اشک نیاز و بهار گریستن در آستان آفریدگار بخشاینده‌ی غفور است.

فلهذا فرصت های طلایی این شب ها را باید ارجمند شمرد، تجدید و تعهد خویش را با همه‌ی ارزش های دین نجات بخش اسلام، توسط دعا و نیایش رقم زد و چهره‌ی پالایش شده‌ی خویش را با قلم توبه و جوهر اشک ترسیم نمود.

## د مالیې وزارت او د افغانستان بانک...

د دې هوکړې له مخې به د افغانستان بین البانکي اداینیز سیستمونه (ACSS) او د افغانستان د ادایني سیستم (APS) به د مالیې وزارت له اسیکوډا یا د ګمرکونو د معلوماتو خپل کاره سیستم، سیګتاس یا د مالیې وزارت د مالیاتو جامع او معیاري سیستم، افمس یا د افغانستان د مالي اداري معلوماتي سیستم سره نښلول کېږي.

ښاغلي خالد څرګنده کړه، چې مخکې به امارتي عواید د افغانستان بانک په مرکز او څانګو کې په لاسي ډول راټولېدل، چې له امله یې په کارونو کې ځنډ راته خو په خبره یې، د یاد شویو سیستمونو له نښلېدو وروسته به ټول عواید په برښنایي بڼه جمع کېږي.

هغه دغه راز وویل، چې د امارتي لګښتونو د ترسراوي لپاره د افمس سیستم د وصل کارونه تر کار لاندې دي، چې د چارو په اسانولو کې به مرسته وکړي او په په ټولو ولایتونو کې به فعالیت کوي.

د نوموړي په وینا، د امارتي کار کوونکو د معاشونو او لګښتونو د اجرا ټولې چارې به هم په برېښنایي او انلاین ډول تر سره کېږي، چې تر دې مخکې به د چک په بڼه د مالیې وزارت له طرفه افغانستان بانک ته استول کېدل.

د افغانستان بانک لومړي مرستیال وویل: «د تادیاتو د برښنایي سیستم له تطبیق وروسته به ټولو اجرأت په نړیوالو معیارونو برابر شي، د عوایدو، لګښتونو او معاشونو اجرأتي پروسې به منظمې شي».

ده دا هم وویل، چې د نغدو پیسو راکړه ورکړه به محدوده کړي، چې د پیسو د ژر زرېدو، لېږد او له احتمالي خطره به مخنیوی وشي.

د معلوماتو له مخې، دا کار به په راتله ډول د امارتي عوایدو ټولولو او د لګښتونو اغېزناک مدیریت له لارې به د بودیجوي څارنې او د مالي بې نظمیو د مخنیوي لامل شي، چې د دولت خزانې ته ډېره ګټه رسوي.

صدیق الله خالد زیاته کړه: «د برېښنایي تادیاتي سیستم تطبیق سره به په هېواد کې د پانګونې بهیر پراختیا ومومي، ځکه چې د پانګوالو او سوداګریزو راکړو ورکړو لپاره خوندي او روڼ چاپېریال رامنځ ته کړي».

د مالیې وزارت د عوایدو لوی رئیس شاه حسین حسیني د دغه تړون د لاسلیک پر مهال را بلل شوې خبري غونډې ته وویل، چې په برېښنایي توګه د عوائدو راټولول به مراجعینو ته ډېره اسانتیا برابره کړي، چې له مخې به یې په ډېره کمه موده کې په نژدې سیمه کې د تعرفې له لګښت پرته خپل مالیات او فیسونه تحویل کړي.

هغه زیاته کړه: «هوډ لرو چې د اسلامي امارت د زعیم عالیقدر امیر المؤمنین حفظه الله دوه حکمونه، چې په برېښنایي بڼه د بانکونو له لارې د عوایدو ټولول دي، په هغو وزارتونو او امارتي ادارو کې تطبیق کړو چې اوس په فزیکي بڼه ټولېږي».

د امیر المؤمنین د فرمان له مخې، ټولې امارتي عایداتي ادارې اړ دي چې خپل عواید د بانک له لارې راټول کړي، له خپل سري لګښت څخه ډډه وکړي او مالي اجرااتو کې د روڼتیا اصل ته پام وکړي.

**نذیر منیب**

کارتون هفته



# د اعتکاف فرصت له لاسه مه ورکوه!

**حسان مجاهد**



اعتکاف د رمضان په ټوله میاشت کې غوره عمل دی خو د رمضان په وروستۍ لسیزه کې د مؤمن لپاره یو غوره فرصت دی؛ ځکه په یوه لسیزه کې داسې څه ترلاسه کولای شي، چې په کلونو کلونو یې نه شي ترلاسه کولای. د اعتکاف له زیات شمېر ګټو څخه یو شمېر ګټې په لاندې توګه بیانېږي.

**۱_ له الله تعالی سره د بنده مینه او تعلق پیدا کیدل:**

بنده چې له الله تعالی سره مینه او تعلق غواړي، نو لومړی به هغه څه له منځه وړي، چې د بنده او الله تعالی تر منځ تعلق له منځه وړي، چې هغه موانع ډیر خوراک، ډیر څښاك، ډېر خوب او له خلکو سره ډیري خبرې او ګډون کول دي؛ الله تعالی بنده ته د روژې نیولو امر وکړ، ترڅو له ډیر خوراک او څښاک څخه وساتل شي او اعتکاف یې بیا ځکه روا کړ؛ تر څو بنده له خلکو سره ډېرې خبرې او تعلقات پرېږدي، د بندګانو په بدل کې له الله تعالی سره یې محبت پیدا شي او د الله تعالی ملګرتیا د قبر په هغه دهشتناک وخت کې ګټه ورته ورسوي چې یوازې پروت وي او بل هیڅ ملګری نه لري.

**۲_ د لیلة القدر شپې ته انتظار کول:**

د پخوانیو امتونو عمرونه دراز وو خو د عمل ثواب یې کم وو او د محمدي امت بیا عمرونه ډېر کوتاه دي، خو الله تعالی په ژوند کې داسې قیمتي وختونه ور باندې لورولي دي چې په کم عمل د زرګونو کلونو ثواب ترلاسه کېږي، د رمضان په وروستۍ لسیزه کې یوه داسې شپه ده چې عبادت یې تر زرو میاشتو غوره ده او الله تعالی له بندګانو څخه ځکه پټه کړې ده چې دوی یې د ترلاسه کولو لپاره لس شپې سبا کړي او قدر یې ورته معلوم شي او ددغه لسو شپو په سبا کولو لیلة القدر ته انتظار کول، د اعتکاف له اساسي ګټو او اهدافو څخه دی.

**۳_ د بخښنې امید کول:**

که په دنیا کې مجرم د یو چا دربار ته ور شي، په چیغو چیغو او فریاد ترې بښنه غواړي او تر بښنې وړاندې کډه نه اخلي؛ خامخا به بخښل کېږي، دا شان معتکف هم د الله تعالی دربار(مسجد) ته راشي، هلته د یو زنداني په شان زارۍ او فریادونه کوي او له الله تعالی څخه د ګناهونو بښنه غواړي، امید شته چې وبښل شي.

**٤_ له خلکو یوازیتوب:**

معتکف له خلکو یوازې وي او سلف صالحینو به خپلو اتباعو ته ددې سپارښتنه کوله، چې یو څه وخت له خلکو یوازي توب کوئ، د آخرت فکر کوئ او له ځانه سره محاسبه کوئ. عمر فاروق رض به ویل: تاسو خامخا لږ وخت یوازیتوب ته ځانګړی کړئ! مسروق رح به ویل: انسان باید داسې وخت ولري چې خپل ګناهونه ور یاد کړي او مغفرت وغواړي. إبن جوزي رح به ویل: که له رب سره یوازې شې، د هغه معرفت به ترلاسه کړې!

**٥_ له ناوړه کړنو کرکه:**

د اعتکاف بله ګټه داده چې له ناوړه کړنو، حرکاتو، عاداتو کرکه پیدا شي، ډیر وخت یو څوک په ځان کې ناوړه عادات لري او یا د مواد مخدره وو روږدی وي، خو کله چې په اعتکاف کې له دغو شیانو ځان وساتي؛ وروسته یې ټول عمر ترې کرکه پیدا شي.

**٦_ په غوره اعمالو همیشتوب:**

معتکف چې کوم نیک اعمال لکه ذکر، تلاوت، صلاة تهجد، فکر، محاسبه او مراقبه تر سره کوي، ډېر وخت له اعتکاف وروسته هم الله تعالی په دغه غوره اعمالو د همیشتوب توفیق ورکړي.

**۷_ اخلاص پیدا کیدل:**

هیڅ یو عمل الله تعالی ته تر هغه نه ده قبول، تر څو چې اخلاص پکې نه وي، د اعتکاف له ګټو دا هم ده چې کله زړه له الله تعالی سره وتړل شي، بیا نو د بنده په اعمالو کې اخلاص پیدا شي او هر قول، فعل، حرکت او سکون یې د الله تعالی لپاره شي.

**۸_ د زړه صفایي:**

رسول الله«ص» فرمایي: خبردار! په بدن کې یوه ټوټه غوښه ده، چې په اصلاح یې ټول بدن اصلاح کېږي او په فساد یې ټول بدن خرابېږي او هغه ټوټه زړه ده! کله چې معتکف له عبادت سره اشنا شي او له ګناهونو ځان وژغوري زړه یې صفا کېږي او د زړه صفایي په اعتکاف کې تر ډېره حده امکان لري.

نو ای مؤمنه وروره! د رمضان دوه لسیزي په ختمیدو دي او یوه قیمتي لسیزه لا درته پاته ده، نو پاڅه د اعتکاف اراده وکړه، لس شپې له مخلوقه وه خالق ته کډه بار کړه او د آخرت توښه برابره کړه؛ ځکه خدای خبر چې را روان کال به ژوندی او که تر تورو خاورو لاندې یې!

# افغان اعلانات

**اطلاعیه فروش موتر**

اسامی محترم حسیب صدیقی لمتید یک عراده موتر پلیت ۱۲۸-۳ ش کابل نوع تیوتا کرولا غرفه دار خویش را بعد از طی مراحل قانونی خرید و فروش بالای عابد فرزند اسد الله بفروش رسانیده است. بناء اشخاص ادارات و موسساتی که با عراده فوق کدام معامله داشته باشند الی مدت سه یوم به مدیریت ترافیک کابل اطلاع دهند. ۹۸۶۵

***

**اطلاعیه فروش موتر**

اسامی محترم عبدالفتاح فرزند عبدالحمید یک عراده موتر پلیت ۱۸۲۵۵ بس کابل نوع تیوتا کرولا بنز بس خویش را بعد از طی مراحل قانونی خرید و فروش بالای فرید فرزند حاجی عبدالرحیم بفروش رسانیده است. بناء اشخاص ادارات و موسساتی که با عراده فوق کدام معامله داشته باشند الی مدت سه یوم به مدیریت ترافیک کابل اطلاع دهند. ۹۸۶۸

***

**اطلاعیه مفقودی**

یک قطعه سند اقرار خط شرعی نمبر ۱۴۷/۴۴۳ مورخ ۱۳۶۶/۴/۳۱ مرتبه محکمه ناحیه سوم شهر کابل به اسم رجب علی فرزند برات علی ولدیت مسافر خان مفقود گردیده از اعتبار ساقط می باشد. ۹۸۷۷

***

**اطلاعیه تغییر مکان رهنمای معاملات**

دفتر رهنمای معاملات عبدالله مسکین دارنده جواز شماره (۶۰۰۵) به اسم محترم عبدالله فرزند حشمت الله واقع ناحیه ۱۰ سرک جدید وزیر اکبر خان موقعیت دارد و میخواهد به ساحه سرک چهارم پروژه تایمنی ناحیه ۴ شاروالی کابل نقل مکان نماید. بناء مراتب به آگاهی شما رسانیده شد. ۹۸۷۸

***

**دعوت به داوطلبی**

د افغانستان برشنا شرکت از تمام داوطلبان واجد شرایط دعوت می نماید تا در پروسه داوطلبی Procurement of Survey, Design, Supply, Installation, Test and Commissioning of KV Transmission ۲۲۰ ,۲km Line Connection from ۲۲۰KV Shebarqhan- mazar TL up to new Substation of Aqcha Jawozjan دارای کود نمبر DABS/1402/NCB/W-023-Rebid-(۳) اشتراک نموده و نقل شرطنامه را به شکل سافت در حافظه یا فلش دسک از مدیریت قرارداد های ساختمان بدست آورده ،آفر های خویش را مطابق شرایط مندرج شرطنامه و طبق قانون و طرزالعمل تدارکات طور سر بسته از تاریخ نشراعلان الی ساعت ۱۰:۰۰ قبل از ظهر روز شنبه تاریخ ۲٤/حمل/۱٤۰٤ مطابق ۱۲-اپریل-۲۰۲۵ به ریاست تدارکات دافغانستان برشنا شرکت واقع دهمزنگ شهر کابل ارایه نمایند آفر های ناوقت رسیده و انترنیتی قابل پزیرش نمیباشد .

۱- تضمین آفر: مبلغ ۱,٤۰۰,۰۰۰one million Four hundred thousand AFN.میباشد.

۲- جلسه قبل از داوطلبی : مورخ ۱٤/حمل/۱٤۰٤ مطابق ۲-اپریل-۲۰۲۵ به روز چهار شنبه ریاست تدارکات,منزل ششم برگزار میگردد.

۳- آفر گشایی: جلسه آفر گشایی روز شنبه تاریخ ۲٤/ حمل/۱٤۰٤ مطابق ۱۲-اپریل-۲۰۲۵ برگزار میگردد.

٤-آدرس و محل آفر گشایی : منزل ششم اطاق کنفرانس ریاست تدارکات.

۵-آدرس اداره : د افغانستان برشنا شرکت واقع دهمزنگ ناحیه سوم شهر کابل.

برای معلومات بیشتر به شماره ذیل تماس گیرید.

شماره تماس: ۰۲۰۲۵۱۳٦۷۷- ۰۷۲۹۰۰۳۷۳۷

آدرس الکترونیکی : Akbar./kamandi@dabs.af abdullah.afghanzoy@dabs.af

***

**موضوع: نشر اعلان سرمایه‌گذاری تانک تیل امارتی لرخاب ولایت بغلان**

شرکت امارتی نفت و گاز افغانستان در نظر دارد تانک تیل امارتی لرخاب ولایت بغلان ملکیت خویش را از سرمایه شخصی متقاضیان در بدل امتیاز قرارداد ترمیم و برندینگ نماید. افراد، اشخاص و شرکت‌های که خواهش سرمایه‌گذاری را داشته باشند اعتبار از نشر اعلان هذا الی (۲۱) روز تقویمی با ارایه درخواستی شرطنامه و بل احجام پروژه ترمیم و برندینگ تانک مذکور را از دفتر مرکزی شرکت امارتی نفت و گاز افغانستان واقع سرکوتل خیرخانه جوار ناحیه ۱۷ شاروالی کابل به دست آورده می‌توانند.

## نورستان کې ۳ کتابتونونه جوړ او چوپړ...

بشپړې او په تجهیزاتو سمبال شول.په همدې موخه جوړو شویو مراسمو کې د نورستان د اطلاعاتو کلتور رئیس مولوي سیمع الحق حق بیان د یادو کتابتونونو د بداینې او بیارغونې برخه کې د شانتي رضاکاره ټولنې فعالیتونه ستایلي دي. نورستان کې دغه کتابتونونو د اطلاعاتو کلتور ریاست په همغږۍ د شانتي رضاکاره ټولنې له لوري ترمیم او بیارغول شوي دي.

د یادو کتابتونونو په بیارغونې سره ځوانانو ته د مطالعې ارام چاپېریال برابر شوی دی.

نورستان یو له هغو ولایتونو دی، چې په تېرو څو لسیزو کې د حکومتونو له پام لوېدلی و، خو اسلامي امارت په راتګ سره یې د مهمو لارو جوړېدو سربېره په کې ګڼې هغه پروژې پیل شوې، چې د خلکو لومړیتوب دي.

## والی کابل با معاون کمیسیون عالی اهل تشیع...

نمایندگان جامعه اهل تشیع در این دیدار ضمن اعلام حمایت از نظام، خواستار توجه بیشتر به مشکلات و چالش‌های اقتصادی، تجارتی و اجتماعی‌شان شدند.

والی کابل ضمن استقبال از این درخواست‌ها، تأکید کرد که مقام ولایت متعهد به حل مشکلات تمامی شهروندان، بدون در نظر گرفتن وابستگی‌های مذهبی و قومی، می‌باشد.

وی اطمینان داد که مشکلات تجارتی، اجتماعی و سایر چالش‌های جامعه اهل تشیع مورد بررسی و رسیدگی قرار خواهد گرفت. همچنین در این نشست، بر اهمیت همکاری و هماهنگی بیشتر میان دولت و اقشار مختلف جامعه تأکید شد. در پایان، شرکت‌کنندگان از حمایت والی کابل قدردانی کرده و ابراز امیدواری نمودند که همکاری‌های مشترک منجر به تقویت همبستگی ملی و پیشرفت اجتماعی و اقتصادی در ولایت کابل گردد.

## طی یک سال، بیش از ۳۷ هزار تن سیاحان...

در طی سال ۱۴۰۳، بیش از ۳۷ هزار تن سیاحین داخلی از ساحات تفریحی دره مولانا صاحب، آبتک، آب پران، سرخاب، تنگی واغجان، جنگلات آزره و ساحه تفریحی میرآبدال بابا این ولایت دیدن نموده اند که این رقم نسبت به سال گذشته افزایش چمشگیری را نشان می‌دهد. آقای تسل افزود: که بیشترین سیاحان را باشندگان ولایات قندهار، غزنی، میدان وردک، پکتیا، خوست و کابل تشکیل می‌دهد که در روز های جمعه و سایر روز ها به ساحات تفریحی این ولایت امده از آب و هوایی گوارا و طبیعی آن لذت می‌برند. همچنان آمر فرهنگ و گردشگری ریاست اطلاعات وفرهنگ از سرمایه داران خواست تا جهت آماده کردن سهولت ها در ساحات تفریحی لوگر سرمایه گذاری کرده و یک زمینه خوب عواید را برای خود و هموطنان خویش فراهم سازند. قابل ذکر است که چندین ساحات کوچک تفریحی دیگر نیز درلوگروجود دارد که در روز های جمعه و سایر روز ها صد ها تن باشندگان مناطق مختلف این ولایت ازان دیدن می نمایند.

## له کندهاره بهر ته سلګونه...

۴۲۱ زره او ۷۵۸ ټنه د وچې او تازه مېوې په ګډون، حبوبات، حیواني او کرنیز محصولات، سبزیجات او کاني توکي صادر کړي دي.

## بغلان کې ۸۰۰۰ وسپنیزې...

نوموړي زیاته کړې، چې دغه فابریکه ۱۰، ساده ۱۲ متره، کش ۱۲ متره او ۱۵ متره د برښنا ستنې تولیدوي چې د هېواد ګڼو ولایتونو او په ځانګړي ډول نهو شمالي او شمال ختیځو ولایتونو ته لېږدول کېږي او د برښنا شبکې د جوړولو او لینونو د غځولو په برخه کې ترې ګټه پورته کېږي.

## د کابل ـ کندهار پر لاره...

د کابل ـ کندهار پر عمومي سړک د د دې ولسوالي مخې ته رامنځته شوې ده.

د یادونې وړ ده، چې د شهراه کنډک او د دامان ولسوالۍ اړوند مسوولینو د پېښې ځای ته پر وخت رسېدنه کړې او لازم اقدامات یې ترسره کړي دی.

## پکتیا کې سرې میاشتې د لسګو زرو...

د مسئولینو په خبره دوی د یو اساسي کلینیک او یو ګرځندوی روغتیایي ټیم له لارې ۷۹ زره کسانو ته په OPD, قابلګي، سوېې تغذي، واکسین او مختلفو برخو کې روغتیایي خدمات وړاندې کړي دي. مسوولین وایي، چې دغه راز د سوري زړه په ناروغۍ اخته ۶۸ ماشومان یې پلازمېنې کابل ښار بېلابېلو روغتونونو ته د درملنې په موخه ورپېژندل شوي چې ټول لګښت یې د دغې ادارې لخوا ورکړل شوی دی.

## د غزې آهونه او د اسلامي نړۍ

ترشاحامیان لري او د صهیونېست رژیم د وژنو ماشین د دوی په تېلو چلېږي.

بل خوا، اسلامي هېوادونو کې هم د تحرک او له دې مظلومو مسلمانانو د فاع څرک نه لیدل کیږي. اسلامي نړۍ له سترې ازموینې سره مخ ده او تاریخ یې دا ناغېږي ثبتوي. اسلامي هېوادونه د خپلو متحدینو له وېرې یا د اقتصادي او سیاسي ګټو او ملحوظاتو له وجې سپوږ نه کوي او حتی په زړه او خوله یې د فلسطین د دفاع نیت هم نشته. د نړۍ دوه میلیارده مسلمانان ددې ډرامې تماشاچیان دي. اسلامي نړۍ دې نور خپل تېر ته ستنه شي، وحدت دې وساتي، له تفرقو او اختلافونو دې لاس واخلي، د ځان پوښتنه دې وکړي، ظالم ته دې یو موټی شي، تویې شوې وینې دې وګټي او د یوه ستر قوت په توګه دې په نړۍ کې ظاهر ه شي. دا چاره شونې ده، هېڅ محال نه دي، خو له غاړې د مریتوب طوق غورځول او په یوه غږ راټولېدل، د غزې برخلیک پر بله اړولی شي.

## د کندهار دکانونو ریاست سلګونه میلیونه افغانۍ...

مرمر، کرومایټ ، سرپ او جست منرالونو او ساختماني موادو څخه لاسته راغلي.

دا په داسې حال کې ده چې د کندهار کانونو ریاست په تېر ۱۴۰۲ هـ.ش کال کې ۷۹ میلیونه، ۳۹۴ زره ۸۵ افغانۍ عواید تراټول کړي و.

د یادولو وړ ده چې دا مهال په کندهار کې د ۱۶ کانونو د استخراج چارې روانې دي، چې د ۱۰ څخه تر ۷۰ سلنه چارې یې تر سره شوې دي.

## نورستان کې ترافیکي پېښې ۱۱...

پېښې په تړاو خواشینې ښودلې او روغتیایي مسوولینو ته یې سپارښتنه کړې چې د پېښې ټپیانو ته ځانګړې پاملرنه وکړي.

دا په داسې مهال ده، چې بېګا شپه هم د کابل ـ کندهار پر عمومي سړک د یوې ترافیکي خونړۍ پېښې د څلورو تنو ژوند اخېستی دی.

## سلګونو پوځي وسایطو...

د دې قول اردو د حمایه لوژستیکي کنډک اړوند ورکشاپونو کې د مسلکي او تخنیکي پرسونل له لوري ترمیم شوې دي.

د خبر له مخې، د بېلابېل ډول پوځي وسایطو په شمول ۲۲۷ میله سپکې او درنې وسلې هم ترمیم او د استفادې وړ ګرځېدلې دي.

د یادونې وړ ده، چې اړوند مسوولینو د بیت‌المال وسایطو او وسلو د ترمیم او ساتنې په برخه کې د لا ډېرو هڅو ډاډ ورکړی دی.

# Shariat Daily

**Shariat**
**Published by**
Islamic Emirate of Afghanistan
Eng, Uzair Baryaly ، Director of Gov.dailies
0202526340
Chief Editor : Farooq Ghaljai/ 0778635852
Email: info@shariatdaily.com
WWW.shariatdaily.com ویب سایت:

**شریعت**
د دولتي ورځپاڼو رئیس:
انجنیر عُزیر بریالی / ۰۲۰۲۵۲۶۳۴۰
مسؤل مدیر: فاروق غلجی/ ۰۷۷۸۶۳۵۸۵۲
مسئول سکرتر: خالد افغان/ ۰۷۷۳۰۶۲۸۳۲
د شریعت برېښنا لیک: info@shariatdaily.com
پته: اتمه ناحیه، د المپیک خلور لارې، د حضوري چمن ختیځ، کابل ـ افغانستان
**شماره توزیع و شکایات:** ۰۲۰۲۳۱۲۵۰۹ / ۰۷۶۶۰۴۴۹۶۶/ ۰۷۳۱۶۰۶۰۷۳

Thursday 20 March 2025 / Established: 1995 / 2nd Season / Vol: 712


# له کندهاره بهر ته سلګونه زره ټنه صادرات شوي



د کندهار د سوداګرۍ او پانګونې خونې مسئولین وایي، سږ کال له دغه ولایت بهرنیو هېوادونو ته د څه باندې ۴۴۷میلیونه ډالرو په ارزښت ۴۲۱ زره ټنه صادرات شوي دي.

د مسئولینو په خبره صادراتو کې د وچې او تازه مېوې په ګډون، حبوبات، کاني مواد، سبزیجات او حیواني محصولات شامل دي.

د یادې خونې مرستیال عبدالباقي بینا وویل، تېرو ۱۱ میاشتو کې یې له کندهار څخه پاکستان، هند، چین، امریکا، متحده عربي اماراتو، سویډن، ایران، ترکیې او جرمني ته د ۴۴۷ میلیون او ۱۶۳ زره امریکایي ډالرو په ارزښت ... ۷مخ




## ریاض پر سوریې د صهیونیست رژیم هوایي بریدونه وغندل



د سعودي عربستان د بهرنیو چارو وزارت پر سوریې د اسراییلو صهونېست رژیم بریدونه غندلي دي.

یاد وزارت په خپره کړې خبرپاڼه کې ویلي، چې د سوریې په ځینو سیمو د اسراییلي یرغلګرو هوایي بریدونه له نړیوالو قوانینو ښکاره سرغړونه ده.

سعودي عربستان دارنګه پر نړیوالې ټولنې غږ کړی، چې د دغو بریدونو پر وړاندې دې کلک دریځ غوره کړي او د امنیت شورا غړي هېوادونه دې په سوریه کې د اسراییلو د روانو بریدونو او سرغړونو پر وړاندې ودرېږي.

دا په داسې مهال ده، چې د اسراییلي یرغلګرو وړمه شپه هم د غزې په ترانګې کې پر بې‌ګنا فلسطینانو وحشیانه بریدونه کړي دي.

## حمله انتقام‌جویانه نیروهای حوثی بر اسراییل

پس از حمله مرگ‌بار رژیم صهیونیستی بر نوار غزه، نیروهای حوثی یمن در انتقام از مردم غزه یک پایگاه نظامی اسراییل را هدف حمله قرار داده‌اند.

آقای سریع افزوده، یک پایگاه نظامی اسراییل با موشک‌های بالستیک از سوی نیروهای حوثی یمن در واکنش به قتل عام مردم غزه هدف قرار گرفته است.

او هشدار داده، در صورت ادامه حملات رژیم صهیونیستی بر نوار غزه، دامنه حملات به اسراییل نیز گسترش خواهد یافت.

به گفته یحی سریع، نیروهای حوثی یمن نمی‌توانند در قبال قتل عام فلسطینیان در نوار غزه بی‌تفاوت باشند.

در ویدیوهای نشر شده از این حمله موشکی از تل‌آویو، پایتخت اسراییل نیز دیده می‌شود که آژیرهای خطر به صدا در آمده و مردم سراسیمه پناهگاه جستجو می‌کنند.

هنوز از تلفات و خسارات این حمله موشکی اطلاعاتی در دست نیست.
اردوی رژیم صهیونیستی نیز مدعی شده که موشک‌های بالستیک شلیک‌شده از یمن را خنثی کرده است.

## زلنسکي پر اوکراین د بریدونو له درېدو هرکلی وکړ



د امریکا ولسمشر ډونالډ ټرمپ او د روسیې ولسمشر ولادیمیر پوتین په ټلیفوني خبرو کې د ۳۰ ورځو لپاره د اوکراین د انرژۍ پر بنسټونو د بریدونو په درېدو هوکړه کړې ده.

رویټر خبري اژانس کاږي، چې د اوکراین ولسمشر ولادیمیر زلنسکي له دې هوکړې هرکلی کړی او هیله یې څرګنده کړې، چې د دې خبرو ټول جزئیات ورسره شریک شي.

د راپور له مخې، زلنسکي د ټرمپ او پوتین له خبرو وروسته د آلمان او فرانسې له ولسمشرانو سره هم ټلیفوني خبرې کړې دي.

## بغلان کې ۸۰۰۰ وسپنیزې ستنې تولید شوې



د بغلان ولایت د برښنا د ستنو جوړولو فابریکې مسئولین وایي چې په ۱۴۰۳ کال کې یې په بېلابېلو اندازو کې ۸۰۰۰ ستنې جوړې کړې دي.

د بغلان د ستنو جوړولو فابریکې ویاند حسام الدین ویلي، چې دغه فابریکې په ۱۴۰۳ کال کې په بېلابېلو اندازو کې ۸۰۰۰ ستنې جوړې کړې چې د تېر کال په پرتله زیاتوالی ښیي. ۷مخ

### د صنعت او سوداګرۍ وزارت :

## له قزاقستان سره مو سوداګریزې اړیکې پراخې شوې



وزارت ویاند اخوندزاده عبدالسلام جواد زیاتوي؛ د دواړو هېوادونو ترمنځ روان کال د کرنیزو پیداوارو د صادراتو ترڅنګ د کارخونو خام مواد افغانستان ته را وارد شوي، چې ټولیز ارزښت یې ۴۳۰ میلونه ډالرو رسېږي.

دغه راز د یاد هېواد ډیپلوماتانو د کانونو او پټرولیم وزارت له چارواکو سره په لیدنه کې د کانونو په ځانګړې توګه د تېلو، ګازو، سرب او جستو په برخه کې د پانګونې لېوالتیا ښودلې.

ورته مهال اقتصادي کارپوهان د دواړو هېوادنو ترمنځ د سوداګریزو او اقتصادي اړیکو پراختیا ګټوره بولي او وایي، چې وبه کولی شي چې په دې برخو له بوبل څخه خپلې اړتیاوې پوره کړي.

په دې وروستیو کې د دواړو هېوادونو د چارواکو ټګ راتګ، د ممنوعه ډلو له لیست څخه د اسلامي امارت نوم لرې کول او افغان سوداکرو ته په دې هېواد کې د ننداراتونونو جوړول هغه څه دي؛ چې د دواړو هېوادونو د اړیکو د پراختیا ښکارندویي کوي.

## طی یک سال، بیش از ۳۷ هزار تن سیاح از ساحات تفریحی لوگر دیدن کرده اند



مسئولان ریاست اطلاعات وفرهنگ ولایت لوگر می‌گویند که در سال ۱۴۰۳ بیش از ۳۷ هزار تن سیاحین داخلی از ساحات تفریحی این ولایت بازدید نموده اند.

محمدگل تسل آمرفرهنگ و گردشگری ریاست اطلاعات وفرهنگ لوگر می‌گوید... ص۷

## نورستان کې ۳ کتابتونونه جوړ او چوپړ ته وړاندې شوي



د نورستان ولایت ځایي مسئولینو خبر ورکړی، د یاد ولایت مرکز پارون، کانټیوا او واما ولسوالیو کې د ۸ میلیونه افغانیو په لګښت د درې بابه کتابتونونو د ترمیم، بیارغونې چارې ... ۷مخ

## د کابل ـ کندهار پر لاره خونړۍ ترافیکي پېښې د څلورو تنو ژوند واخیست



د کندهار دامان ولسوالي د یو فلډر او ټرېلر ترمنځ له یوې خونړۍ پېښې خبر ورکړی، چې په فلډر کې څلورو تنو خپل ژوند له لاسه ورکړی دی.

د یادې ولسوالۍ د ترافیکو امر ملاحبیب‌الله حفاظت وایي، چې دغه پېښه بېګا شپه ... ۷مخ

## کابل کې سلګونه کیلومتره سړکونه پاخه شوي

د کابل ښاروالۍ استازی نعمت الله بارکزی وایي چې په تېرو درې کلونو کې په پلازمېنه کې څه باندې ۲۷۰ کیلومتره نوي سړکونه جوړ شوي دي.

نوموړی وایي، اوسمهال هم په پلازمېنه کې د سړک جوړونې پر ۸۲ پروژو کار روان دی.

د سرپرست حکومت له بیا واکمنېدو وروسته، په هېواد کې د سړکونو د جوړونې چارې په ځانګړې توګه په کابل کې چټکې شوې دي.

## پکتیا کې سرې میاشتې د لسګو زرو تنو درملنه کړې




د پکتیا ولایت افغاني سرې میاشتې ریاست مسوولینو خبر ورکړی، چې د ۱٤۰۳ کال پیل څخه تر دې مهاله یې د دغه ولایت په بېلابېلو سیمو کې ۷۹ زره کسانو ته په مختلفو برخو کې روغتیایي خدمات وړاندې کړي دي. ۷مخ